# هِندکی

او

# هِندکو

لیکونکے

خواجه مُحمّد سائیل، بهادرکلے پیښور

Created with Scanner Pro

# هِندکي

او

# هِندکو



لیکونکے

خواجه محمد سائل بهادر کلے پېښور

د کتاب نوم ——————— هندکی او هندکو

د لیکونکي نوم ——————— خواجه محمّد سائل

د چاپ نیټه ——————— جون ۱۹۹۸ ء

بیعه ——————— (اتیا ۸۰) روپۍ

پریس ——————— سلمان پرنټرز پېښور

کتابت ——————— سیّد حضرت شاه

# فهرست

# څوخپلې خبرې

دَ هندکي او هندکو متعلق نما دَدې تحرير غټ مقصد دا دے
چې دَ هغه ليکونکو دَ بې ځايه فرضي او دروغونه ډک ليک نيوے وشي
چې څه موده راسې دَ تاريخ دَ اصليت او حقائق دَ شکل مسخ کولو کوشش
کوي. او دَ هندکي هندکو متعلق دَ ځانه جوړ او په دروغونو، دَلائل
پيش کوي. ما دَدې کتاب ليکلو کښې دَ اختصار او محض په تاريخي
بناء شواهدات او حواله جات نه کار اخيستے دے او کوشش مې کړے دے چې بحث او
تبصرې نه اجتناب وُشي. او په دې موضوع دَ قديم مؤرخين ليک
او تحرير دَ قارئين او لوستونکو مخې ته کښېښودے شي او هغوئ دَ صحي
او غلط اندازه کولو ته چاج واخلي او صحي رائې قائمه کړي. تاريخ په
حقيقي شکل پردَه راښکاره او په هوا کښې مارغان نيول دَ عقلمندانو کار
نه دے. بلکه دَ هوائي او بې سرو پښو خبرې، بيانات او تحريرات
دَ خندا او ټيټوبو باعث شي.

د هندکي او هندکو متعلق د انګرېزي سلطنت دوران ملکي او غیر ملکي مؤرخينو او اهل قلم د پرېړه ليکلي دي. پښتو ادب کښې د ځينو شاعرانو په کلام کښې هم د دوئ متعلق ذکر موجود دے. د دې ټولو مؤرخينو په نزد د هندکي او هندکو د هندوستان نه د راغليو هندوانو ژبه ده. البته د جارج ګريرسن د تحقيق نه په اول ځل دغه زمانه پته ولګېده چې دلته هندوان يا د مغربي پنجاب نه راغلي مهاجرين کومه ژبه وائي. نو دا د دريابې جهلم د غاړې د رچنا باري دوآب لهنداله[1] ژبه ده

د رنجيت سنګهه د پنجاب په سيمه د بربريت او د وحشت او د دې په نتيجه کښې خوف و هراس د مغربي پنجاب د لانده ژبي وېلونکي مجبور کړل چې محفوظ علاقو ته هجرت وکړي. دريابې جهلم نه راپورته د سنده ساګر علاقې نه د پرېشانه خلق په تېښته راوړ رسېدل او چې سکهان دريابې جهلم نه راپورې وتل نو د مهاجرينو ټولو تعداد د غرونو کښې پټ شول. دريابې سنده نه راپورې وتل. او پښتون قوم ځکه بې پناه وانښته. او پښتون د اسلامي دور ولو جذبې او اسلام ځکه د بې کچه مينې تحت دوئ ځان ځکه ګډ د غرونو آباد کړل. دغه بېله خبره ده چې سکهان دريابې سنده نه هم راپورې وتل. د پښتنو کورونه

---

[1] د هندي يا اردو لهجې برعکس "لهاندا" لفظ يا نوم به په راتلونکي ټيک تحرير کښې د پښتو د ټيک دود دستور او لهجې مطابق "لاندا" ليکلې شي.

وران شول، وسوزل شول او غرونه پلو لاړل. خو اخبر کار حالات سم شول. د مغربي پنجاب ځي کورنۍ او ډېر مهاجرين او پناه ګزين دلته مستقل پاتې شول او د پښتنو په سيمه آباد شول.

پښتون تجارت پيشه ساهوکاران نه وو. د دوکاندارۍ او نورو کسب وکارونو ته يې په سپک نظر کتل. د پنجاب دغه نوي آبادکارو ته د دوی د دغه کمزورۍ لويه فائده ورسېده. څه موده نا پېره نه وه چې سېنه ماله دار شول او د کور محلت او جايداد خاوندان شول.

لکه چې مخکښې وويلې شول انګرېز مؤرخينو د هندکي هندکو متعلق کافي معلومات او تحقيقات کړي دي. اهل قلم ته پکار دي چې د تاريخي کتابونو څخه استفاده وکړي او لوستونکو ته صحي معلومات ورکړي. په دې کتاب کښې ځکه چې د هر کم سرچينې ذکر او اقتباسات را نقل دي. نو باید دا چې د مونږ پښتانه او هندکي ليکوال د دغه تواريخي کتابونو مطالعه وکړي او په حقيقت بناء مستند معلومات او مواد را خونده کړي.

د صوبې د نوم متعلق نن سبا پښتون هندکي ليکوال مختلف قسم تجاويز او نومونه پېش کوي. په کار ده چې په دې موضوع يو سرسري نظر راچوو چې حقيقت واضح شي.

د صوبه سرحد د نوم نه آګاهه دا علاقه ځينې ليکوالو د «روه» ځينې د کوهستان[۱] او بعضو پښتنو د پښتونخوا په نوم ياد کړې ده.

---

[۱] علامه اقبال نوواري د اسيمه بعضې کلام کښې د «کوهستان» په نوم ياده کړې ده.

د پښتونخوا نوم باره کښې نا ما مضامین د ۱۹۷۲ء بانګ حرم پښتو برخه. سنه ۱۹۹۰ء
کښې، د فرنټیر پوسټ د خطوط کالم کښې ۱۹۹۱ء کښې نا ما چاپ کتاب "کوی اسی"
د پکتویس خط تخت، او ۲۲ د سمبر ۱۹۹۷ء مشرق اخبار کښې چاپ شوید ی.
"پښتونخوا" د سیاسی بحث مباحثې، مخالفت او ذاتی انانیت نه
بالاتر قومی او ملی نوم دے. چې د پښتو ادب د کلاسیکی شعراؤ او ادباؤ په کلام
او تحریر کښې نن ورا سې موجود را روان دے. د دې تاریخی حقیقت او
اصلیت نه انکار د پښتون قوم د شخصیت، نسلیت، ادب، ژبې او د
سنګو نو نارکو نو کلو تو قدامت نه سکوت منکر یدل دی. د حقائق نه
چشم پوشی او نه درپه کوته پټول دی. د پښتونخوا د نوم نه انکار
پښتو ادب ته نا انصافی او ظلم دے چې د پښتو ادب هم یو بیګول دې قسم
نیاټه او د تاریخ حقیقی شکل بدلول او په بل رنګ کول نه نیاړه دے.

## روه

د تاریخ فرشته لیکونکے محمد قاسم داسی مه د "روه" یعنی غر" په نوم
یاد کریده. او دې ځائې اسنوکن "افغان" نیا ئی. هغه په دې
علاقه د "هندکی" د میشت او اسنوکښې هم ذکر نه کوی.

"روہ" سے مخصوص کوہستانی سلسلہ مراد ہے. جو لمبائی
میں بجور سے سیوی (ریاست قلات) تک جو بکوکا علاقہ
ہے اور چوڑائی میں حسن ابدال اور کابل تک پھیلا ہوا ہے"

(تاریخ فرشتہ جلد اول ص ۸۲)

نعمت اللہ ھروی لیکی:

"روہ" عبارت است از کوہِ مخصوص کہ ابتدائے طول آن از واد کابا جوڑتا قصبۂ سیوی از توابع بکھر و باعتبار عرض از حسن ابدال تا کابل و قندھار در حدودِ ایں کوہ واقع است. کوہِ سلیمان و کوہِ اشنغر در مابین ایں کوہ است"

(مخزنِ افغانی)

محمد حیات خان خلف محمد کرم خان متوطن واہ ضلع راولپنڈی لیکی: "حصۂ مشرقی بنام ملک "روہ"، یعنی پہاڑی نامزد ہوا۔ محمد اکبر بادشاہ نے تقسیم صوبجاتِ ہند کے وقت اس ملک کو صرف بنام صوبۂ کابل تحریر کیا.... روہ کی حدود کو اُس وقت کی مؤرخوں نے جانب مشرق دریائے سندھ کو عبور کر کے حسن آبدال تک جا لکھا ہے. بلکہ مؤلف کے زمانہ میں بھی اکثر جغرافیہ نویس افغانستان اور بلوچستان کو ایک حلقہ میں لکھتے ہیں"

(حیاتِ افغانی ص ۳)

سید الطاف علی لیکی:

"روہ" افغانستان میں کوھستان کا ایک وسیع سلسلہ ھے. جس کے شمال میں کوہِ کاشغر، جنوب میں بھاکر اور بلوچستان، مشرق میں کشمیر اور مغرب میں دریا ھلمند ھے. جو قندھار کے قریب بہتا ہے.

(حیاتِ حافظ رحمت خان ص ۲)

ډاکټر حبیب الله تږي لیکي :

" د "تاریخنامهٔ هرات" او "روضات الجنات في اوصاف
مدینة الهرات" او څینو نورو واسنادو له حقیقي مطالعې
او تحلیل نه وروستو سړی دا ویلې شي چې د څنګیزیانو
د وخت نه افغانستان (پښتونخوا) په عمومي ډول د
هرات نه ترکشمیره، سیستان نه تراباسینده او چترال نه
تر بحیرهٔ عرب پورې پروت وو

(په هندکښې د پښتو نثر او ادبیاتو ایجاد
او وده پړاو نه.
اډیسر مشتق نوټ هیوادمل ص۱۱)

سراولف کیرو لیکي :

" داحقیقت لکه د نمر ښکاره دې چې د کنډهارا سرحد مارګله
وو. پښتانهٔ چې نن هم مارګله ته راورسي نو هغوی
داسې محسوس کړي لکه چې خپل کورته راورسیدل.
او یا خپل کورته بهر روان وي.

(پټهان ص۸۲)

" د بیو پښتون په نظر کښې هندوستان هغه ملک وو
چې سرحد یې د درهٔ مارګله بلې غاړې نه شروع کیدو." (پښتانه
د پښتو ادب یوه زره تپه ده ص
اشنا به یې ملک ته پرې نه ږدم ز ورته یا بر وان د مارګلې په کنډاو بدمه

# صُوبهٔ کابل اُو مشرقی افغانستان

دَ مغل دوران حکومت صوبهٔ کابل، دریایې جهلم پورې پر ته
علاقه وَه اوُ دَ ډُوگرا بیانو په زمانه دا علاقه دَمشرقی افغانستان په
نوم یادېده.

دَ رنجیت سنگھ دَ قبضې نه وروستو دَ پښتورا تک او هزاره علاقه
دَ سکھ حاکم تحت وه او دَ سکھ اخیرینے نوجدار سردار چتر سنگھ وو.
۱۸۴۹ء کښې دَ چتر سنگھ دَ شکست نه پس دَ دې سیمې حکمران انگریز شو.
دَ انگریز سرکار آخیری دوره کښې چې دَ تورې او مړانې ځائې کسب
وهنر او تعلیمی قابلیت واخیستو. دَ متو او جنگی صلاحیت مقام چې
زبانه او سیاست ونیوو. دَ شمشیر زن او بهادر کلیوال راج، خانی،
سردارئ او حاکمیت ختم شو او دَ حکومت وملازمت اهمیت بنا زونو
ته منتقل شو. نو دَ سیمې په سیمه هندکی مهاجرین دَ سینهٔ قسمت او رونه
مستقبل مالکان شول. دَ پاک بهارت دَ ویشې نه پس دَ سرکاری
ملازمت په اهم عهده دَ ښارې علاقو باشندگان تعینات شول
او دَ کلیوال علاقو پښتانهٔ وسېدونکی دَ هر قسم سهولیات او مراعات
نه محروم شول.

# صوبه سرحد

۱۱ ستمبر ۱۸۰۳ء ووچې انګرېز جرنېل لارډ ليک آګره او دهلي فتح کړل. مُغل بادشاه شاه عالم ثاني او دغه نه وروستو مُغل شاهان برائے نام د دهلي بادشاهان شول. او دا سلسله د بهادر شاه ظفر ۱۸۵۷ء تر بادشاهت جاري وه. انګرېزانو د آګره، دهلي، اوده، روهېلکنډ او فرخ آباد مفتوحه علاقو نه يوه صوبه تشکيل کړه او د دې صوبې نوم يې شمال مغربي صوبه N.W.P. کېښوو ځکه چې دغه صوبه دغه زمانه کښې د دوی د هندوستان د حکومت په شمال مغرب اړخ پرته وه.

مارچ ۱۸۴۹ء کښې انګرېز د سکهه سلطنت اخېري پاتې علاقه بشمول پېښور، هزاره، اټک، چارسنګهه نه قبضه کړه او انګرېز د خېبر تر ونو خوا ته راورسېدو. يو څو کاله انګرېز سرکار د سکهانو انتظامي ډهانچه حسب دستور بحال وساتله او د خپل ضرورت مطابق يې لږ ډېر ردو بدل وکړو. خو د پښتنو د انګرېزانو خلاف الغاؤ تلغاؤ متواتر جنګونو نه او جهاد انګرېزان مجبور کړل چې د دې علاقې د انتظامي

صلاحیت او فعال بندوبست په غرض یوه نوې صوبه تشکیل کړي ۔
چونکه اوس دانګرېز سرکار د حکومت په شمال مغرب برید دا علاقه وه
نوې دې وجه یې دا صوبه د صوبه سرحد په نوم متعارف کړه ۔

**The province of N.W.F.P. was constituted on the 1st March 1901**
**( Census of India 1901 by H.H. Risley and E.A. GAIT page-66)**

ترجمه : د شمال مغرب سرحدي صوبه په یکم مارچ ۱۹۰۱ء وجود
کښې راغله د **N.W.P.** او د **N.W.F.P.** په نومونو کښې توارد او
یوشان والے وو لوظ وری وه چې د **N.W.P.** نوم بدل شي نو په دې اساس
د **N.W.P.** نوم متحده صوبه جات اوده وا ګره[1] شو او د بدقسمتۍ نه د
پښتونخوا نوم دانګرېز سرکار په کاغذات شمال مغربي سرحدي صوبه شوه ۔

**In 1901 Lord Curzon created on the western frontiers of our country a new Province, named N.W.F.P. with a view to defend the country from all possible dangers as also to solve the tribal question. in order to avoid confusion of the similarity of names between the new province and the earlier North Western Province, was re-named as the United Province of Agra and Auadh.**
**(History and Administration of N.W.P. By Dharma Bhanu P-407)**

ترجمه : سن ۱۹۰۱ء کښې لارډ کرزن زمونږ د ملک په مغربي سرحد
یوه نوې صوبه تشکیل کړه او د دې نوم یې شمال مغربي سرحدي صوبه
کېښودو ۔ چې ملک د هر ممکن بېروني خطرات نه محفوظ وساتي ۔
او د قبائیل مسئله هم حل کړي ۔ د نوې او زړې صوبې په نومونو کښې د
یورنګی لرې کولو په غرض زمونږ صوبه د متحده صوبه جات اوده
وا ګره په نوم شوه

---

۱ ۔ له د پاک بهارت د وېش نه پس اوس دا علاقه د اتر پردیش **U.P.** په نوم صوبه ده ۔

رای بهادُر دیوان چند اُبهرای لیکی،

It may be said that Ranjit Singh created NWFP by sweeping the Afghans back across the Indus into their mountains.
(The Evolution of NWFP by D.C Obhrai. Page 30).

ترجمه: دَ شمال مغرب سرحدی صوبه حقیقت کښې هغه وخت وجود کښې راغله چې رنجیت سنګه پښتانهٔ دَ دریابې سنده په شاغرونو ته واپس وتښول.

۱۸۴۹ء کښې چې انګریزان دَ پښتنو په سیمه قابض شول. نو بقولِ آرتهر سوینسن ـــ

The Frontier Province an inexhaustible vein of excitement. It was a testing ground for new weapons, it was a live training area for officers and men; it made the army feel that it had a real job to do.
(NW.Frontier Page 343)

ترجمه: سرحد دَ جوش نه ډک یو نهٔ ستړې کیدونکی اعصاب راکړل. دا ځائې دَ نوي وسلې دَ پاره آزماښتی میدان وو. افسرانو او ځوانانو دَ پاره دَ ځښت ورمکړک تربیت علاقه وه. دلته فوجې ځوانانو محسوس کړل چې حقیقی معنو کښې یې فرائض په غاړه دی.

موږ دلته دَ الله بخش یوسفي دَ یو تقریر نه خبر دَ دې څو کړښو بیان دَ کړو هم ضروری ګڼو چې هغهٔ دَ خلافت کمیټې او سادات رضا کاربوا جلاس ته کړے وو.

Allah Bakhsh Yusafi who referring to Sir.Hamilton Grant's remarks in regard to the Pathans that they would destroy the peace of India if the British left.( S.B Diary S.No.37. B.3 dated 24-01-1930)

ترجمه: الله بخش یوسفي دَ سر هیملټن ګرانټ دَ بیان په حواله ووې چې که چرې انګریزان هندوستان نه لاړل

نو پښتانه به د هندوستان پر امن ماحول تباه و برباد کړي.

---

# پښتونخوا

مونږ پښتون د ښمنو قوتونو په قسم قسم نومونو یاد کړي یو. د دغه غیر پښتون مؤرخین د نومونو افغان[1]. پټان، کوهستاني او روهیله برعکس پښتون همیشه خپل ځان هم پښتون یاد کړیدے. د غیر پښتون مؤرخین دغه نومونه ځینې وخت د دوی په تتبع کښې ارادتاً یا غیر ارادي طور پښتون شعراء وادباء هم استعمال کړي دي.

دغسې غیر پښتون مؤرخین که هر څو مونږ خلاته د "روه" "کوهستان" یا شمال مغربي سرحدي صوبه یاده کړیده ولې پښتون دا صوبه د پښتونخوا په نوم سپاڅ ندہ. دلته زه د هیرودوټس، بطلیموس او نورو یوناني وغیره مؤرخین د پکتیکا، پکتیا، پکتي ها نومونو ذکر نه کوم، بلکه د قدیم پښتو شاعرانو او ادیبانو په واسطه وایم چې هغوی دا علاقه د پښتونخوا په نوم پیژنده.

ښکارندوی ۱۲۶۲ء، هونک بابا ۱۲۹۳ء تا ۱۳۰۴ء، اخون درویزه ۱۵۳۳ء تا ۱۶۳۸ء، خوشحال خان خټک ۱۶۱۳ء تا ۱۶۸۹ء، اصل خان خټک بن

---

[1] افغان د ارمیني ژبې د اوغان معرب شکل دے چې معنی یې "غر" دے.

خوشحال خان خټک، سخرالله خان مومند ۱۶۷۵ء تا ۱۷۰۵ء، پیر محمد کاکړ ۱۷۰۹ء تا ۱۷۸۹ء، احمد شاه ابدالي ۱۷۴۷ء تا ۱۷۷۳ء، علي اکبر تا سم ۱۷۳۷ء تا ۱۷۸۹ء، میاں نعیم متي زئی ۱۷۶۷ء تا ۱۸۱۵ء وغیره۔ د انګریزو حکومت د قیام نه وړاندې صوبې ۱۹۰۱ء کښې د تشکیل نه ډیر اګاهو دا علاقه د پښتونخوا په نوم یاده کړېده۔

د هند کي هند کو متعلق زما دا معمولي کوشش د چا سپکاوے یا د ړنا وے هرګز نه دے بلکه زما غرض مقصد تاریخي حقائق بیانول دي۔ تاریخ د تصوراتي، خیالي سوچ و فکر او فرضي داستان نوم نه دے تاریخ د تیرو واقعات و حالات په ټهوس دلائل بنا، او د عقل په تول پوره محکم بیان دے. چې یو مورخ یې یو نسل نه بل نسل ته امانت سپاري او راتلونکي نسل د قومونو عروج و زوال په دغه صفا شفاف آئینه کښې ګوري او د خپل مستقبل تعین د دغه تاریخي حقائق په رڼا کښې کوي۔

# تاریخي پس منظر

دَ افغانستان دَ لوړې پر وخت دَ پاک و هند په سیمو دَ مسلسل او متواترو
حملو، چپاؤ، او قبضو دوره وه. دغه زمانه بد مېدانی غازیانو سپېڅل
اوږه وند شپږول کوان اوښا ممکن وو. د لښکر بو دو باشي پښتنو
او د ډېرو په ملنو او لواګانو کښې وو. ځکه چې د ... حمله کوونکو لښکر دَ
نه مرف د غرونو تنګ دښواري لارې او قدرتي قلعه بندي دَ
تمونږ د محافظت ضامن وي. د مېدانی سیمو ستونزنه مرکزونه دعوت

او د ځان ومړ ژ د تباهۍ باعث وه.

تاسو گورئ چې نه مونږ د تاريخ د زړو زمانو نه بيا تر نن عموماً د غرونو په سر او غوا کښې راوځي. او داسې د پوکم آثار دي چې په ميداني سيمو موندلے شي. د دغه وجه دا چې د پنجاب په سيمه کښې يو خوا د پينځه درياب بونو، جهلم، چناب، راوي، ستلج او بياس د تباه کارۍ په سبب انساني تمدن ناممکن وو چې نن په دې ترقي يافته دور او وسائل باوجود هم په دغه علاقو مېشته ابادۍ ته هر کال کافي نقصان او زيان رسي او هر کال د برشکال په مياشت کښې د پنجاب لکونه تنه کلي او ښارونه د دې سيلابونو د سيلابونو نه لاندې وي. نو بل نو د آريا، سيتهين، ساکاکشن، ايراني، يوناني، هن، ترک وغيره اقوام چپاوونه او يلغار وو چې د پنجاب په سيمه انساني تمدن تقريباً ناپيد او مشکل وو. دا د ظهير الدين بابر د دور اندېښتي او د مغل شاهانو فراست وو چې د کابل سلطنت يې په هر حال د هند د سلطنت يو ضروري جزو او برخه وساتله. او دې اصولي د هند سلطنت څخه شموليت که پښتنو د پاره به راتلونکي وخت د هر فال او لويې مصيبت ورنو پنجاب د پاره يو نېک فال او لويې برکت وو.

د کابل و پښور صوبې آمدني کمه ده. نو د افغانستان داسې د هندوستان پاتک او دروازه گڼلې د هندستان مغل بادشاه د دې ټاټې خوچي مصارف د پاره کافي ...

په دې غرض استوی چې ایران و توران څخه د دې ځایو
سرحدات محفوظ وی. صوبهٔ کابل پخوا زمانه د هندوستان
د قلمرو نه خارج وه. او تورانیانو د هندوستان سرحدات تیر لو
نتیجه دا وه چې پنجاب هر وخت وران و بجاړ پروت وو
اوس چې کابل د هندوستان د مغل بادشاهانو تر لاس دے نو
پنجاب آباد دے او هندوستان محفوظ دے"

(خلاصة التواریخ ص ۱۳۶، تصنیف و تالیف ۱۶۹۶ء)

د مغل سلطنت دوران د پنجاب ذکر په اولنی ځل د تاریخ په
پانهو څرګند او ښکاره کیږی. دې نه اګاهو مونږ د شاهنامهٔ فردوسی
په صفحات د پنجاب د دوو ځایونو لاهور او ملتان سرسری شان ذکر
وینو. چې د هندوستان په لار محض د بانډه جات حیثیت لری. او د
وسط ایشیا او هندوستان ترمینځ د دې او پراؤ مرکزونه وو.
اندازه دا ده چې د مغل سلطنت د مکمل ضمانت او تحفظ په سبب د پنجه
دریابونو ترمینځ دې سرسبز و شاداب سرزمین اهمیت بیا موند
د مختلف علاقه جات خلق دلته راغلل، خصوصاً هغه خلق چې د هندو
برهمن د ظلم او جبر نه تنګ وو. د کرکروند یې په حق فی دلته د پرشول
د حملو، چپاؤ او یلغار وېره ترهه ورکه شوه. د خطرات نه ډک پُر آشوب
دور ختم شو، د امن او اطمینان ژوند یقینی شو. کلی، ښارونه آباد شول
او د ژوند تسلسل قایم شو. د هندوستان د خلقو عموماً او د پنجاب خصوصاً

پښتون قوم ځخه ارښه درېشه، تګ راتګ او روابط خام شول. د پښتون
د تورې شرنګ او مشرقي ځخه سم ګډ دې ځای خلقو روادارنه، مهمان
نوازي او ورورولۍ ځخه بلد شول او د پښتون په سیمه کې مستقل
سکونت پامنه دار شول.

تاریخ لوستو ځخه معلومیږي. چې د قدیم هندوستان حدود د
دریایې جهلم نه ښکته بالعموم او سرهند نه بالخصوص شروع کیدل
د دریایې سنده او دریایې جهلم منځو مانه د سنده ساګر
علاقه شاملې، غیرآباده او خشکه وه. د خشک سالۍ او بیرنۍ قوتونو
د حملې په سبب دلته خلق د بړکم وسیدل او دا سیمه د هندي
اقوام او پښتون ترمینځ د No Man Land یا Buffer Zone حیثیت لرلو.

د ګندهارا تهذیب د دوران ټیکسلا د ګندهاري شاهانو د ګرمۍ په
موسم صدر مقام وو چې د دریایې سنده د موجونو او سیلابونو په سبب
خپل ځان د بهرنۍ حملې ورنه محفوظ وساتي. د مغل سلطنت په دور
کښې چې دا علاقه د صوبه د کابل برخه او حصه وه. نو د حسن ابدال ډېر
لویې اهمیت وو. کشمیر ته د کاروان د آمد ورفت او تجارت لار د
حسن ابدال پکهلۍ په علاقه وه. مغل شاهانو اکثر د حسن ابدال پکهلۍ
په لار کشمیر ته تلل. دغه دوران د پښتنو ځینې قبائل دلته آباد وو
چې د دغه وخت لیک تحریر او سفرنامو نه په دې علاقه د پښتنو د
مېشت پته لږي. واصل روښانی ۱۵۷۳ نه ۱۶۴۸ لیکي:

۵

ختک واړه په ساړه په غرمه ستړي ي
له خوارۍ يې نغن مه شه پېرېدلي
د بنګښ د مغل لاس ته سپېد ے نه شي
په ظالم د غمي بيانو شه رهزن
ورپسې د بنګښ ملک يې مسلّم که
دعوي کېږي دے د اټک د سرړه بن

د قصه مشائخ (تصنيف ۱۷۳۴ء) بېکوټي خواجه محمّد زاهد اتکي
په نزد د آټک قلعه کېږي چاپېره پېښتانه آباد دي۔

"درآن عصر اکبر بادشاه درين ملک آمده فکر ساختن
قلعه وابادي شهر کرده۔ و بنائے يک برج قلعه درميان دريا
کردند. که هر چهار طرف قلعه و شهر عليم عظيم است. چنانچه طرف
شمال نه صد هزار (۹۰۰۰۰۰) افغانان يوسفزئي سکونت دارد۔ و
سمت غرب آن قلعه افغانان ختک، و طرف جنوبي افغانان
بهنگي خيل وطرف شرقي افغانان سرکاني، دوتاني. و ترين
وغورغشتي وغيره اقوام سکونت دارد" (ص ۴۵)

ترجمه:- اکبر بادشاه دغه دوران (۱۵۸۱ء) دې ملک ته راورسيد
قلعه او ښار يې آباد کړل او د درياب په منځ کښې يې
د قلعه يو برج تعمير کړو. څکه چې د قلعه او ښار څلورواړه

آباد خه مضبوط دُشمن پروت وو. شمالاً لنډ تاره کم پولاکه نېژه بانډ یوسفزي وو. د قلعه غرب ختک وو. جنوب باړه تنګي خېل ختک وو. او شرقاً سرکاني دوتاني ترین او غور غشتي و غېره پښتانه قومونه آباد وو."

هري رام ګپتا لیکي:

"راځایي (راولپنډۍ) د سکهه سنګړ تېپور په تحت دے. دلته دېرې یات ختک آباد دي سکهان چې حمله وکړې نو دوی خراج ادا کړي. خو چې هغوی ستانه شي نو دوی بیا خپل آزاد حیثیت برقرار وساتي. د راولپنډۍ نه ځې په پوره شپږ میله لرې "خارپوره" سرایي ده. چې جرخت ورنخه د اوبو لختي بهیږي. په ولا د څپر خبتو پُل دے. زمیندار یې پښتانه دي. سکهانو په دوی حمله وکړه. د دوی خاروي یې بوتلل خو د دوی اطاعت یې ونه منو دو. دې نه پورته حسن ابدال دے. چې زمیندار یې پښتانه دي او د کابل حکومت ته خراج ورکوي. دې نه آخوا شمس آباد دے چې ختک پښتانه یې کرونده کردي. بیا اټک راځي چې د دریاب سندھ په غاړه د یو غر د پاسه پروت دے دلته دوه زره کوره آباد دي قلعه یې د ختکو پښتنو قبضه کښې ده." (لبنډ مغل رانګړي) صـ ۳۰۲)

دَ تاریخ ضلع پشاور مطابق:

"دُرّ دُرّان (احمد شاه ابدالی) بذاتِ خود پشاور سے روانہ ہوکر بہمراہی سعادتمند خان خٹک فوج مرہٹہ کے مقابلہ کو آیا اور اُن کو شکست دی۔ اور اُسی معرکہ میں سعادتمند خان کی کوششوں سے متشکر ہوکر بہ عطائے لقب سرفراز خان سرداری تالیف جہلم او سکو حاکم بنا دیا"

(ص ۳۰)

---

دَ غوری خیل یوسفزی راتګ نه اګاهو دَ پښېور مردان او باجوړ وغیره علاقو یانديې دلازاک آباد وُو۔ اول یُوسفزي راکوزه شول اودَ دریاب کابل په شمالي غاړه پراته دلازاک او سواتیان یې دَ هشتنګر، صوابۍ، مردان او سوات نه ۱۵۲۵ کښې وکابدل. بیا ورپسې غوریاخیل قبائل رابنکته شول اودَ دریاب کابل په جنوبي غاړه پراته دلازاک یې دَ سُلطان پور په مقام ۱۵۳۳ کښې دَ یوې دست جنګ نه پس په تښته مجبور کړل سواتي قبائل دَ تهاکوټ او مانسهره ترمینځ دَ دریاب سنده شرقاً خطه باندې آباد شول او دلازاک دَ دریاب جهلم او دریاب سنده ترمینځ بودو باش اختیار کړه۔ خو چه کله اکبر بادشاه دَ دوی په دې حرکت ناراض شو چې څو واریې دَ کابل

و هند ته مینځ کاروان لوټ تالان کړو. هغه د دوی یو لویې تعداد
هندوستان ته منتقل کړو. او د دوی ډېر کم کسان په دې سیمه آباد
پاتې شول. سواتیان د یوسف زي با ځکندار شول او یوسف زي تر
اټک و دریابې جهلم ورسېدل. نو دې دوران د دریابې سنده
په پورتنۍ غاړه خټک د غرونو نه را دوکوېدل او د اکبر بادشاه
او غوریاخېل ترمینځ دښمنۍ او مخاصمت نه یې فائده پورته
کړه او د اټک و نونیاره ترمینځ آباد شول. د مغل او یوسفزی
ترمینځ دښمنۍ دوئم مزید مضبوط کړل او د اټک و دریابې جهلم
ترمینځ په ټولې علاقه قابض شول. تر څو چې دغه حیثیت د رنجیت سنګه
تر وخت قائم وو.

د اکبر بادشاه په زمانه حکومت د باره موسند ځینې کورنۍ د
پېښور سپار مشرق اړخ ته زرخېزه زمکونه یې دخل شول. بیځینې
پلو لاړل. د دوی جایداد خالصه سرکار شو. د دغه زمکو د کرو
کروندې د پاره وخت په وخت د هند رافضي او راجپوت سردارانو
د هندوستان نه خلق راوغوښتل. دغه خلق دلته آباد شول مستقل
پاتې شول او د خالصوال په نوم مشهور شول.

د دلازاک شکست او غوریاخېل فتح محض د کلو جایداد قبضه
نه وه بلکه په دې کښې کور کهنړی څخه پیوست په لوړه ډېکې آباد
د پېښور نبار څو کورونه ۱ آخري یادوکانونه او قلعه هم شامل وه.

غوري خېل د دې سيمې فاتحين او قابضين بلا شرکت غير وو. همايون
چې خپل ورور کامران ته شکست ورکړ او دلته يې د سکندر خان ازبک تخت
سنبالې د پاره کړو نو د پرزار غوري خېل د پېښور قلعه سر دوباره قبضه
کړه او د محمد همايون اتره سوخ او قبضه ملکيت ختم شو. د مرزا محمد حکيم
په زمانه حکومت د پېښور په علاقه د مغل نظامت برائې نام وو
او د هندوستان په لور د لويې لار او شاهراه د حفاظت تر حد محدود وو.
د جهانګير و سرير خاوند تکړه بهادر شمشير زن غوري خېل پښتون
دوکاندار نه وو. کاشتکار نه وو. په دې وجه د هندوستان مختلف
اطراف نه خلق راغلل، دوکاندار او کاشتکار شول.

د کابل په سيمه کښې پخوانۍ ايراني نژاد سني مسلمان تاجک دوکاندار
وکاشتکار وو نو د پېښور په سيمه هندي نژاد اعوان و باغبان دوکاندار
وکاشتکار وو. پښتانه محض مالکان وو او د دوي کار شمشير زني او د
خپل ټاټوبي د حفاظت او تحفظ وو.

" Of all the races, Afghans are the Chief, both as predominating in numbers and as being the governing people"
( Afghanistan by H.W. Bellew P- 14)

ترجمه: پښتانه تر ټولو نورو قومونو [illegible] د ملکيت [illegible]

د تواريخ نه څرګنده ده چې د سبکتګين او راجه جې پال ترمنځ
۹۷۹ء او محمود غزنوي او راجه جې پال ترمنځ ۱۰۰۱ء کښې چې د پېښور
په مقام کښې جنګونه وشول. او د آنند پال ۱۰۰۸ء کښې شکست نه پس
د پېښور سيمه د مسلمانانو په قبضه او ملکيت شوه او د پاک هند

علاقه سنه ۱۰۰۱ء تا سنه ۱۰۲۶ء د اسلامي لښکر متواتر او ولسو حملو د هند او شاهیه رعب، دبدبه او شان و شوکت ختم کړو. نو د پښتنو مسلمانانو رُخ توجه او پام د پاک و هند په زرخیزه ځمکو مرکوز شو. ۱۱۷۳ ء کښې د غوري قبائیلو یو مشر شهاب الدین محمّد غوري د دهلي سُلطنت قبضه کړو او دغلته یې په وړومبي ځل اسلامي حکومت قائم کړو. دغه نه وروستو د پښتنو کښې شمېر بهادر شمشیرزن د پاک و هند په کافي ځمکه قابض شول.

,, د هند په سیمه اسلامي تاریخ دراصل د پښتنو د فتوحات و مقبوضات تاریخ دے،،

(افغانستان ازمېکمن ص۳۶)

د پښتنو دغه شمشیرزن بهادر شاهز لو د پاک و هند علاقونه په وړومبي ځل د یو هندي نژاد ځان څخه د کار خدمت کپاره راوستل. دلته د دوئ نوکران چاکران شول، آباد شول، نسل یې زیات شو او دلته مستقل یاتې شول لکه بهادرکلے، لنډي یرنجو، لفرزخاني، بلاّ بېړ، کړها تمردین او داسې نورو ډېر و کلو کښې اوس هم دغه هندي نژاد خلق موجود دي. د هندکي په نوم مشهور دي. نېله اصلي ژبه یې هندکو ده. پښتنو څخه کډه وړ دي او محض په پښتو ژبه پوهېږي.

---

تزکِ بابری وړومبئ معلوم کتاب دے. چې ددې علاقې دځینو قبیلو
لکه آفریدی، یوسفزی، اورکزی، بنګښ، توری، دلازاک
ګګیانی، مومند، محمدزی، لوهانی، نیازی، عیسی خیل، خلجي
او وزیرو ذکر کوي.

بابر خو وارې د پښور ښار د ګورکهتړي په سیل راغلے دے
خو هغه د پېښور په بیمه د هند کي قوم هیڅ ذکر کړے نه دے.

د ګلبدن بیګم همایون نامه کښې د پښتنو ذکر موجود دے خو د
هند کي په حقله تحریر نشته.

د ابوالفضل اکبرنامه، او آئینِ اکبری هم خاموش دي.
د اکبر د فوج یوه لویه دسته د پښتنو قبائیلو په ځوانانو مشتمل
وه. خو د هند کي نسل خلک هم د اکبر په فوج کښې شامل نه وو.

وغه حال د تزکِ جهانګیری دے. عملِ صالح بادشاه نامه او
عالمګیرنامه د هند کي نسل او شرې متعلق هیڅ آثار نه لري.

د علي محمد مخلص ,, حالنامه ،، صفا ښائي چې "بګرام" یا پښور
ښار د غوري قبائیلو ملکیت او جائیداد دے.

,, اکبر بادشاه نیز با حوالِ ایشان بخشوده بدان قرار
که از بزرګان و کد خدایان غوریا خیل چند کسی را به
طریقِ یرغمل طرفِ هندوستان برد. و وطن را که زمان
قدیم بګرام بود و الحال به پېښاور مشهور است. هم

بہ پیشان مقرر داشت. (ص۱۵۹)

ترجمہ: "اکبر بادشاه دوئ (غوري خېل) پخپل حالت پرېښودل او په دې اقرارئي معاف کړل چې د دوئ خوکسان به هندوستان ته بوتلکا بوزي او د دوئ وطن چې پخوا په بګرام مشهور وو، او اوس ورته پېښور وائي، هُم د غسې به د دوئ ملکيت وی.

دريابې بارهه يوه زمانه د پېښور اوسنی بازار په مېنځ بهېده. چې د قصه خوانی په څوا کښې اوس د شاهی کټه په نوم شهرت لري. دا ټوله علاقه د "بارهٔ موسند" نامکه وه. جناح پارک، کچری او د چادرنې علاقه د خلیل تام ملکيت وو چې مختلف ادوارکښې دا ټوله علاقه د وخت حاکمانو قبضه کړه. او دلته يې د بهر مختلف خلق آباد کړل.

"تپۂ سوم بنام قصبۂ باگرام مشہور ہے اور تپۂ خلیل سے چہارم حصہ کا مالک سمجھا جاتا ہے. مگر بہ باعث تبدیل حیثیت اِس باگرام کو اُس تپۂ خلیل سے مناسبت حصہ نہیں ہے. یہ قصبۂ باگرام ہمیشہ بہ اختیار حکام رہا ہے. ہر ایک حاکم وقت نے بہ لحاظ خدمت کی، جس کو جاگیر یا برائے آبادی زمین عطا کی. وہی بہ منزلہ مالک تصور ہوتا تھا. جس کا قبضہ دیرینہ ہوگیا. اکثر اُس نے

زمین مقبوضہ کو بذریعہ بیع و ہبہ منتقل کرادیا ہے
اور بہ لحاظ قبضۂ قدیم کے اُس کی طرف سے یہ انتقال جائز
سمجھا جاتا رہا۔ کل رقبہ قصبہ باگرام کے اب چھبیس ۲۶ محال
تصور ہوتے ہیں۔ اودھر ایک مورث نے علیحدہ علیحدہ
رقبہ بذریعہ خرید یا ہبہ یا باجازت حاکم آباد کرلیا۔
اور بعض خاص پشاور میں رہ کر مالک ہیں اور جو زمین
ملکیت سرکار سکھان یا سلاطین و اُمراء دُرّانی کی تھی
اُس پر بھی اب انگریز سرکار ہی مالک ہے
(تاریخ ضلع پشاور از گوپال داس صفحہ ۳۳۲)

---

## هزاره

سنه ۱۳۹۸ء وو۔ چې تیمور لنګ د پښتنو په امداد د دهلی تغلق
حکومت تاخت وتاراج او پائمال کړو۔ د هندوستان نه په واپسی
دَ د شاهراهِ هند وکشمیر په حفاظت د نو ځوانانو پښتنو یوه پلټن

"هزاره منګ" (منګ: پلټن) د چنګېز ترک قرلق (قرلغ) سردارانو

ما تحت مقرر کړه - دغه هزاره منګ اټک څخه تر دې د دریاب سنده په

ښکته غاړه د چچ په علاقه مقرر وه چې د بهرنۍ حملو او رنه پښتنو کشمیر

په وساتي - د هزاره منګ په مناسبت دا علاقه د هزاره قرلق په نوم

مشهوره شوه - انګرېزانو چې راغلل هغوی د راجه پکهل په علاقه مانسهره

پشمول ایبټ آباد او هري پور د ضلع هزاره په نوم مشهور کړه.

او د مانسهره د سیمې دوهم نوم پکهلي مشهور شو حالانکه مانسهره، ایبټ

آباد او چې هري پور هم د هزاره منګ د سرکرمو او فرائضو دائره

علاقه او مرکز نه وو بلکه د غازي، حضرو یعني د چچ علاقه وه. البته د

هزاره منګ په دې توجې دسته کېنې کې شمېر بیاري، مشواني، سرېني

سرواني، کرلال او ترین جدون پښتانه شامل وو. نو غالب ګمان

دے چې په دې اساس دا نوم تجویز او خوښ کړے شو. هزاره، کشمیر

انګرېزانو په ګلاب سنګه د ۷۵ لاکه روپو په عوض کانه کړو. خو د

پښتنو سخت مزاحمت او متواتر جنګونو هزاره د ګلاب سنګه دست

اندازۍ او قبضه ملکیت نه بهر کړه

## هري پور

دسمبر ۱۸۱۲ء وو چې رنجیت سنګه په کشمیر حمله وکړه.

عطا محمد خان ئې مزاحمت وکړو. په جنګونو پښتانه شهیدان شو

خو شکست یې وخوړو او عطا محمد خان والي کشمیر په دې شرط

مجبور شو چې د اټک قلعه د فوجدار ته خپل ورور جهانداد خان افغان
حواله کړي او د سکه سرکار سلطان سپه سالار فقیر عزیز الدین ته
یې بغیر جنګ وجدال حواله کړي. د دې معاهدې په نتیجه دا شوه چې رهتاس
نه تر اټکه سکهان قابض شول او هزاره د دوئ ماتحت شوه. د پښتنو
د سکهانو تخته د هزارې علاقه باندې ته اخېستو د پاره درې جنګونه وشول
او عن چې ستمبر ۱۸۲۳ء کښې هری سنګه تخته د هزاره د پکهلۍ او دهتوړ
په مقام جنګونو کښې زرګونه پښتانه شهیدان شول. هری سنګه د
اټک په قلعه د پښتنو د پکهلۍ په لار د حملې نه د بچاؤ او تحفظ په خاطر
په یو خاص مقام خپل سکه فوځ مقرر کړو چې وروستو د غه ځائې د یو
ښار شکل اختیار کړو او د هری پور په نوم مشهور شو. د سکه او د
انګریز سرکار دوران د پنجاب نه کښې شمېر خلق راغلل او دلته آباد شول.

## ایبټ آباد

د ۱۶ د ستمبر ۱۸۴۶ء د انګریز او سکه سرکار د معاهدې مطابق د
سکه سلطنت د نو رو فوځي مرکزونو نه علاوه جان نکلسن او هربرټ
ایډورډ د ډیره جات او بنوں، جارج لارنس او رینل ټیلر د پېښور
میجرایبټ د هزارې او مسټر هربرټ د اټک اسسټنټ ریذیډنټ مقرر
شول خو ۱۸۴۸ء کښې د پېښور هزاره او اټک فوځي سپه سالار سردار
چتر سنګه د دې معاهدې خلاف شو ځان یې آزاد حکمران اعلان کړو
انګریز ریذیډنټ هیبت واخېستل. جارج لارنس کوهاټ ته وتښتېد د

او ماېجرا ېبټ مشواني قبائل ته پناه واخېسته. د انګرېز سرکار او چترسنګه ترمېنځ نومبر ۱۸۴۸ء د سمبر ۱۸۴۸ء او په ۲۱ فروري ۱۸۴۹ء جنګونه وشول. چترسنګه شکست وخوړو. او بمعۀ خپل زوئې شېرسنګه ګرفتار شو. انګرېز سرکار د ۲۹ مارچ ۱۸۴۹ء اعلان مطابق سکه سلطنت بمعۀ شرقي افغانستان ضبط کړو. مېجر ابېټ د هزارې حاکم شو. دغۀ په هزاره کښې د پښتنو خلاف د يو مستقل فوځي کېمپ جوړولو تابيا وکړه اول يې شېروان څخه د دې مرکز د تعمير بندوبست وکړو. خو بيا يې اراده تبديل کړه او د موجوده ابېټ آباد په سيمه يې دغه فوجي مرکز مقرر کړو. دلته د هندوستان مختلف علاقه جات او خصوصًا پنجاب نه د پښتنو خلاف فوځ او په نور سرکاري ملازمت خلق بهرتي شول. ابېټ آباد د يو ښار شکل بيا موند. د سکه د بربريت نه چې پنجاب نه کوم مهاجرين د دې علاقو ته راغلي وو او غرونو کښې يې پناه اخستې وه. دلته راغلل. جدون او ترين وغېره پښتنو قبائل هم غرونو نه راکوز شول دلته اباد شول. خپله ژبه يې هېره کړه او د هندو پنجابۍ په ژبه رنګ او ګويان شول.

" سکهوں کے قبضہ سے پہلے ہزارہ شامل سلطنت افغانستان مسلمانوں کے قبضہ میں تھا۔ ۱۸۴۶ء میں ہمراہ ملک کشمیر مہاراجہ گلاب سنگھ کے ہاتھ فروخت ہوا جب اُس سے بندوبست نہ ہوسکا۔ تو پھر شامل دربار لاہور

کیا گیا۔ اس ملک کے پہاڑی لوگ ایسے جنگجو نہیں ہیں
جیسے دریائے سندھ کے مغربی پہاڑوں کے لوگ خیرہ سر
اور دلاور ہیں"

(حیاتِ افغانی از حیات محمد خان صک)

د پاک بهارت د ویش نه اُکا هو دلته پښتنو نه علاوه اردو، اعوان
بلوچ، بهاټیه، برهمن، ککهر، گورکهه، جاټ، کړل، کشمیري، کهتري
خوجه، مشواني، مُغل، پراچه، قریشي، راجپوت، سیّد او شیخ نسلونه
اباد وو.

جارج گریرسن د هزاره د ژبې په حقله لیکي:

The Lahnda of the district of Hazara is locally known as Hindki. It is the language of the great majority of the people, but is not the only language of the district. In the extreme south - east there are also speakers of Pashto in most parts of the district and in the extreme north Gujari is spoken by the Gujars and Ajars who wander with their flocks over the hill - country. In the Tinawal hills in the west of the district there is a separate form of Lahnda called Tinawali, while in a small tract on the eastern side we have another language called Dhundli or Kairali.
(Linguistic Survey of Pakistan Vol : IV Page 565)

ترجمه: ضلع هزاره کښې لاندا، ته مقامي خلق "هندکی"
وائي. دا د اکثریت ژبه ده. خو ضلع کښې صرف دا یوه ژبه
نه ده بلکه د جنوب مشرقي اکثرو علاقو کښې خلق پښتو وائي
او د دې ضلعې شمالي علاقه کښې گوجران او اجړ چې په غرونو
کښې مال څاروي څروي، گوجري وائي. د ضلعې مغرب

طرف دَ تناول په غرونو کښې دَ لاندې ایوبڼ شکل "تناولی"

نه به دهٔ ـ بیا مشرق ارخ یو ورکوټې شان علاقه کښې بلهٔ نه به

ده چې ډهونډلی یا کسړالی ورته وائی۔،،

میک لیګان لیکی :

**In Hazara also Hindi is said to be superseding Pashto even among Pathans and allied tribes.**
**(Census of India 1891 by E.D. MacLagan Page 198 )**

ترجمه : هندی دَ هزارې پښتنو او دوئ څخه ملحق قبائیل

کښې هُم دَ پښتو ځائې نیسی۔

# ډیره اِسمٰعیل خان

وائی چې دَ ډیره اسمٰعیل خان ښار ۸۸ اٗ کښې جام اسمٰعیل خان

هوت آباد کړو چې دَ ملتان دَ حاکم سلطان حسین لنګا جاګیر دار او دَ

منګیره او ډیره اسمٰعیل خان نواب وحاکم وو۔ ځینې وائی چې اسمٰعیل خان

او دریا خان دوه ورونه وو۔ دَ بهکر نه بهر یې دَ دریائې سنده

بالمقابل ځایونه جوړ کړل چې خلقو څخه دریائې سنده هنه دَ لوټې

کېدو کومک او امداد وکړی ۔

۲، جون سنه ۱۸۱۸ء وو چې شهزاده کړک سنګه دَ ملتان دَ پښتون

حاکم نواب مظفر خان سدوزی خلاف په ځلورم ځل فوج کشی وکړه

او دَیا کلی نواب مظفر خان پسر شجاع خان صفدر جنګ یې زبردست

مزاحمت وکړو ځو زرګونو پښتنو څخه یې جام شهادت نوش کړو او

رنجیت سنگھ، ملتان، خان گړه، مظفرگړه او شجاع آباد قبضه کړل
د نواب مظفرخان تر زکونه سرائیکی، اقواج، کاشتکار، رعیت او اهلکار
د سکھ قوم د بربریت، درندګۍ او بهیمیت نه د محفوظ مقامات او پناهګاه
په تلاش شول۔ د دوئ یو لویئ تعداد دریایي سند نه راپورته ورتو
او دېره اسمعیل خان کښې پښتنو تخته په پناه اخستو مجبور شول۔

د ۱۸۹۱ء، ۱۹۰۱ء او ۱۹۱۱ء د مردم شمارۍ مطابق دلته پښتنو نه
علاوه اروړه، اعوان، بلوچ، بهاتیه، برهمن، ګکهړ، کورکهه، جات
کشمیری، کهتری، کهوکهر، مغل، پراچه، قریشي، راجپوت، سید او شیخ
وغیره نسلونه آباد دی۔

جارج ګریرسن د سرائیکی په حقله لیکی:

**In Sindhi, the word Siro signifies, the upper country i.e. the up-river- Country and is specially applied to upper Sind , or that part of the province which lies north of Sehwan on the Indus. From this is derived the word sirai, an inhabitant of the Siro, and Siraiki the Language spoken in the Siro**
**(Linguistic Survey of Pakistan Vol : IV by G. Grierson P - 359)**

ترجمه: په سندهی ژبه کښې پورته پاسنی علاقې ته
"سیرو" وائي. یعنی هغه علاقه چې د سیلاب نه پورته ده او دا نوم
د سنده پورتني علاقې تخته مخصوص دے. یا د صوبې هغه برخه
چې د دریایي سنده په غاړه سیهون نه شمال پلو پورته ده.
دې نه سیرائی لفظ جوړ دے چې د سیرو د وسیدو نکو په معنی
دے او چې سیرو کښې کومه ژبه ویلے شی هغې ته سرائیکی وائی۔

یوبل ځای لیکي:

The local name of the upper Sind is Siro and the language of the country is a form of Sindhi , known as Siraiki or up-country Sindhi. (Linguistic Survey of Pakistan Vol : IV  P - 240)

ترجمه: د سندهـ د پورتنۍ برخې عام نوم "سایرو" دے
ژبه یې د سندهي یو رنګ ده چې د سرائیکي په نوم
معروف ده - یعنې د پورته علاقې ژبه "

جارج ګریرسن وائي چې د بنوں او ډیره اسماعیل خان په خواوشا کښې
کومه ژبه عام مروّج ده - دا تهالي ده - تهالي د "تهل" په مناسبت
نوم دے چې د سلسله کوهِ نمک او مظفرګړه ترمینځه شاړه او صحرائي
علاقه ده، هغه لیکي:

The language is known as Thali or the language of the desert. The same form of speech is spoken across the Indus in Dera Ismail Khan and Bannu------- A slightly polished form spoken in the town of Dera Ismail Khan and its suburbs is known as Derawal (Linguistic survey of Pakistan Vol : IV  P - 381)

ترجمه، دا ژبه په "تهالي" مشهوره ده یعنې صحرائي ژبه - د دریایي
سندهـ نه پورې غاړه او خواوشا علاقو کښې په لږ ترقي
یافته شکل کښې دا ژبه د "ډیره والي" په نوم یادیږي،

Returning north, in the northern half of the Sind Sagar Doab , and in the adjacent part of the District of Dera Ismail Khan , there is Thali or dialect of the Thal or desert. (Linguistic survey of Pakistan Vol: I. P - 137)

ترجمه: شمال طرف ته چې دا شی نو شمال کښې د سند هو ساگر نیم
دوآب او ور سره ملحق د ډیره اسمٰعیل خان ضلع کښې تهال
یعنې د تهال یا صحرا لهجه ده"

۱۷ نومبر ۱۷۰۸ء دو چې د سکهه مذهب گورو گوبند سنگهه دکن کښې
یو پښتون قتل کړو د هغه نارینه اولاد نه وو نو په دې وجه هغه خپل
یو کم ذات مرید د راجوړی کشمیر لچهمن دیو المعروف بنده بیراګی خپل
جانشین مقرر کړو. هغه دکن نه خپل پانچ پیارے (د گورو گوبند سنگهه
مریدان) سره سونی پت ته راورسېدو. سکهان ئې ملګری شول.
سرهند وانباله ئې لوټ تالان کړل. زرګونه مسلمانان ئې شهیدان
کړل. د لاهور پورې ئې ټول جماتونه وران او وسوزول او سکهانو خالصه دل
د هن او چنگیز خان یاد ونه تازه کړل. اخیر کار گرفتار شو. او د بادشاه په
حکم په ۱۹ جون ۱۷۱۶ء قتل شو.

د بنده بیراګی قتل و غارت، رهزنی، ډاکه ماری او لوټ تالان
په نتیجه کښې سکهان ډېر زیات مالدار شول او خپل ورکوټی ریاستونه
ئې قایم کړل.

۱۷۶۱ء دو چې احمد شاه ابدالی د پانی پت په مقام د مرهټه و
یو لوئې لښکر ته شکست ورکړو او د هندومت د عظیم سلطنت د قیام
خیال ئې ورنه کړه و د هٔ اوختم کړو. خو د هندومت دې زبردست شکست
او د مغل تباه حال حکومت د سکهه قوم په زړه کښې د سکهه سلطنت د قیام

میاں را ولاړ کړو هغوی د پنجاب په سیمه لوټ تالان او د عام عوام تزلزل و
تشلول نیل محمول کړو. احمد شاه ابدالی د سکهانو خلاف مزید تمل وځل
په پنجاب حمله آور شو. خو د سکهانو د جنګ طرزِ عمل او طریقهٔ کار هغه
سخت پریشان کړو. سکهانو د باقاعده جنګ په ځائې داسې چال نیل
کړو چې احمد شاه به پنجاب ته را ورسېد و نو دوی به ځنګل او غرونو
کښې پټ شول خو چې احمد شاه به بېرته قندهار ته ستون شو
نو دوی به رابهر شول او لوټ تالان به یې شروع کړو.

احمد شاه ابدالی په ۱۴ اپریل ۱۷۷۲ء د جزام په بیماری په حق
ورسېدو. او د هغه په ځائې د هغه بزدل او غیر مستقل مزاج زوی
تیمور شاه بادشاه شو. خو وار د هندوستان د فتح په نیت روان شو
خو د مېنځ لارې نه په بېرته راستون شو. د هغه دې حرکات سکهان
نړه ور کړل او د هغوی فوجې قوت مستحکم شو سکه مت د هندو مت
یو مبتدل شکل او مذهب وو. د برهمن د ناورنه یاتی او تشدد نه
تنګ مظلوم، کم قوت او ادنیٰ ذات هندو، سکه مت ته راواوړېدل

د سکهانو فوجې بربریت او ظلم و تشدد د که دغه زمانه د
هندو مت کم ذات هندو د سکه مت (د هندو مت نوی مذهبی روپ) په
قبولیت مجبور کړو نو بل اړخ د دوی په ضد د بر هندوان مسلمانان
شول. او که یو د ځېل سرامان په سکه مت کښې لید و نو بل د اسلام په

قبولیت کښي.

۱۷۹۹ء کښې د سرچکیه مثل یا خاندان مشر رنجیت سنګه د کهتیه
دلې په امداد د ګجرات د سکه بهنګیا نو نه لاهور قبضه کړو- او اپریل
۱۸۰۱ء کښې د پنجاب حاکم اعلان شو- پښتانه د پنجاب په سیمه جاګي
نه محروم او د سنبرداره شول. هغه د پښتنو په ریاستونو یلغار جاري
کړو. ۱۸۰۷ء کښې یې قطب الدین افغان نه قصور قبضه کړو په
دې جنګ کښې ډېر کو نه پښتانه شهیدان شول.

"لوگوں کے بدن کے کپڑوں تک سکھوں نے اُتار لئے.
عورتیں ننگے سر اور ننگے بدن، سترسے بے بس ہوکر
جا بجا اپنے آپکو چھپاتی پھرتی تھیں مگر کوئی جگہ امن
کی نہیں ملتی تھی- بہت سی اشراف عورتیں جنہوں نے
کبھی بیگانہ مرد کی صورت نہیں دیکھی تھی، اپنے ہاتھ
سے پھانسی لیکر مرگئیں، کئی چاہات میں کود پڑیں....
...بہت سے جوان عورتیں، لڑکیاں اور لڑکے سکھوں نے
شہر سے پکڑ لئے اور غلام بنانے کے ارادہ پر پاس رکھ لئے.

(تاریخ پنجاب صـ۱۸۳ کھنیہ لعل)

رنجیت سنګه ۱۸۱۲ء کښې د اټک په قلعه بلا مزاحمت قبضه وکړه-
پښتنو نه یې کشمیر واخستو. ۱۸۲۱ء کښې شیر محمد افغان نه منکیره
او ۱۸۲۷ء کښې نواب شهنواز خان افغان نه یې ډیره اسمعیل خان

قبضه کړو. دغسې د پښتنو د سکګونو کلونو بالادستۍ او برترۍ د بارکزي سردارانو د سازشي ذهن په سبب ختم شوه.

د غوري، خلجي، سادات، لودي، سوري او ابدالي شاهانو په زمانه کې پښتانه د تاج و تخت مالکان وو. نو د خاندان غلامان او تغلق په زمانه د پښته ورسپاهي په حیثیت د اعلی رتبو خاوندان وو بابر د دوئ په برکت د هند د سلطنت مالک شو. مغل که هر څو د پښتنو خلاف او د راجپوت په حق کښې وو. ولې د راجپوت من مانې او رافضي سردارانو د سرکشۍ سمون د پاره د دوئ ضرورت هم په زیاتي محسوس کېدو. دغه وجه وه چې دریابې جهلم نه نیکته او د هندوستان ورکتي په زرخېزه زمکه دوئ د اهم مرتبو او جاګیرونو مالکان وو.

ملک یې وو راکړے په پنجاب کښې متصل
حکم د پادشاه وو صادر شوے په پرېښول
(خوشحال خان خټک)

د سکه بربریت او درندګي وه چې د پنجاب په سیمه سکګونو کلونو داسې آباد پښتون جاګیردار د خپل اراضي ملکیت نه دستبردار شو د جنګونو دوران زرګونه پښتانه شهیدان شول. د پښتون مسلمان جاګیردارۍ ځایې سکه سردار ونیو. د پنجاب په سیمه د سکه خالصه دل د ظلم و ستم نه زرګونه مسلمانان دریابې جهلم نه راپورې وتل.

د کاغان وکلیات په کوهستان کښې ئې پناه واخیسته، څوک د دریاب جهلم او دریاب سند هترمینځ د سند هسا گر په علاقه آباد شول د مشرق نه مغرب پلوډ مهاجرینو داولسی نقل مکانی او مهاجرت په دې پړلویې تعدا د کښې د سکه سرداړانو د بربریت د لاسه دغه خلق منتقل شول. په دې مهاجرینو کښې پولویې تعداد د پښتون جاگیر دارانو، باغبانانو، اعوان او اهلِ کار هم شامل وو چې د سکه سرکار د بې سره خالصه دلی د خوف وغضب نه د دریاب سند هپه دواړو غاړو خوره شول.

"پنجاب پر سکھوں کا مکمل قبضہ کے بعد پورے پنجاب میں وحشت اور بربریت کا ایک نیا دور شروع ہوا۔ مسلمانوں کو شدید زحمتوں کا سامنا کرنا پڑا۔ ھر طرف قتلِ عام اور تاراجی املاک کا دور دورہ تھا۔ مساجد، مُسلم مدارس اور مقابر مسمار کر دیئے گئے۔ اپنے مخالفوں کو صفحۂ ھستی سے مٹانا سکھوں کے نزدیک مقدس مذھبی فریضہ اور گروجی مہاراجہ کی خوشنودی کا ذریعہ تھا"

"سکھ حکومت کے دوران معاشرتی زندگی میں امن وسکون واطمینان نام کو بھی نہ تھا۔ اِن حالات میں اکثر لوگ پنجاب چھوڑ کر نسبتاً پُرامن علاقوں میں چلے گئے۔"

"لوگ پنجاب سے ترکِ وطن کو کے دوسرے صوبوں میں جانے لگے کئی سربرآوردہ مسلمان گھرانے تو بھاگ گئے اور جو باقی بچے انہوں نے طوعاً و کرھاً سکھوں کی سرداری قبول کرلی"

(تاریخ پنجاب از اقبال صلاح الدین ص ۲۳۹، ص ۳۶۶، ص ۳۶۹)

مارچ ۱۸۴۹ء دوچې د سکھ سلطنت اختتام ته ورسیدو۔ پنجاب او د پښتنو په سیمه انګریز مسلط شو۔ د سکھ سردارانو او خالصه دل قوت او طاقت منتشر شو او انګریز د بست وکشاد مالکان شول. هغوی نهٔ غوښتل چې د پښتون سپاهیانه صلاحیت او جنګجویانه قوت دوباره بحال او مضبوط کړی۔ سکھ نه هم په ویره او خوف وو۔ د پنجاب و پښتنو نخوا په سیمه یې ځیل داسې منظور نظر کسان جاګیرداران سرداران، خانان، ملکان[له]، چودهریان، او اربابان مقرر کړل چې د دوی د حکم په تعمیل وو۔ د انقلاب مطلب تبدیلی وی۔ لویې کورونه واړه او واړه لویې شی۔ د دغه پالیسه په عمل زمونږ په سیمه انګریز حکومت سل کاله دوام واخیست چې زرګونه میله لرې یورپ نه دلته

---

له: مونږ دلته د هغه خان خبره نهٔ کوو چې کوم خان یا مشر د قبیلې په خوښه او مرضۍ مقرر وو۔ او د حاکم وخت مداخلت پکښې شامل نهٔ وو د دغه قسم خانان یا مشی اخلاق اوس هم د یر کلو کیسې آبادی چې د خوارعه او غریب ژوند تیره وی۔

دَ تجارت په غرض راغلي وو. دَغسې پښتون نهٔ يوازې داچې دَ پنجاب
او درياب سِنده وجهلم ترمېنځ جائيداد او جاګيرونه محروم شو.
دَ هندوستان دکن او کشمير په سيمه يې هم قوّت او شان وشوکت
ختم شو. بلکه دا به ووايو چې اصلي پښتون دَ چا دَ تورې دَ زړهٔ او
شونګ وشهرتي چې په وطنونو مشهور وو. دَ سکه او انګريز حکومت دوران ذليل
او خوار زار شول او دَ ټُوک ډوډۍ پامته دار شول.



دَ تاریخي شواهدانو، ثبوتونو، حقائق او روایاتو

په رڼا کښې مونږ دا ویلې شو چې هندکي :

۱) دَ هندوستان دَ سیمې هغه باشندګان دي چې دَ محمود غزنوي په هندوستان دَ حملو نه وروستو مختلف ادوار کښې مسلمانان شوي دي. دَ هندو یا هندي کلمه کافر او مسلمان دواړو دَ پاره مستعمل وه چې جائز او مناسب نهٔ وه دَ کافر او مسلمان په شناخت کښې فرق او بیلتون راوستو دَ پاره "هندکي" نوم متعارف شو.

۲) دَ هندوستان نه مختلف وختونو کښې پیشه ور کسبګر خلق راغلل. کلو، ښارونو کښې آباد شو. دَ هند په مناسبت "هندکي" مشهور شول.

۳) دَ مغل سلطنت نه اګاهو دَ پښتون قبائل ابا نه دَ قبیلې "مشر" یا "خان" په شخصیت بنا وه. مغل نچل انتظامي او مالي اُمور دَ پاره "خان" نه علاوه دَ قبیلې مشر "ارباب" مقرر کړو او دغه سلسله دَ سکهانو او انګریز په دور کښې جاري وه.

اول زمانه کښې دَ شمشیرزنه او بهادرۍ دور وو. دَ کلي باندې

اهمیت وو. د جاګیردار او زمیندار راج وو، خان نواب څخه د غریب ضرورت او حاجت پوره کېده. دغه کلي او خانان او اربابان د عام (عوام) خوشحالۍ او سوکالۍ مراکز وو. د ښارونو اهمیت نه وو. د هندوستان نه ډېرونه یات هندوان راغلل چې د برهمن د ناروا زیاتي نه تنګ او پرېشان وو. د پښتون خان، نواب، ملا نه مت ئې اختیار کړو مسلمانان شول. دلته آباد پاتې شول.

۱۴: د هندوستان نه ډېر شودرا راوړسېدل. د کور کوټې او جړې صفائي یې په غاړه شوه. مسلمانان شول. د مصلیانو په نوم مشهور شول لکه څنګه چې انګریز څخه شودرا هندوان راغلل چوړیان مشهور شول او عیسایان شول.

۱۵ پښتون بهادر او شمشیرزن وو. د هغه کار کرکروندې، دوکانداري یا نور کسب هنر پېشه نه وو. د هغه کار د جنګ په میدان د مړانې او بهادرۍ ښودنه او مظاهره وه. د خپل رعیت استحکام او تحفظ وو نو په دې وجه هغوئ خپل اهلکار باغبان، اعوان، پراچه، نائي قصاب او جولا ته دغه کارونه حواله کړل. د دغه کسب او هنر یو لوی تعداد هندوستان نه راغلی خلق وو، نو په دې وجه "هندکی" مشهور شول.

---

د پښتو نحوا په سیمه ځینې کسان د هند یا هندوستان په مناسبت
د هند کې په نوم شهرت لري خو د پېښور یا هزاره په سیمه آباد
زیات تعداد د هغه خلقو دے چې ,, هند ،، څخه یې هیڅ قدیم تعلق
ربط یا مناسبت نیشته - لکه د کشمیري ته به کشمیري ځکه چې د رنجیت سنګه
د پرېوت نه دلته راغلل - د راجپوت او هندوستاني ته به هندي وه - د افغنی
سردارانو ته به فارسي وه - د انقلابِ روس په وجه چې کوم ازبک تاجک
دلته راغلل . د هغوئ ته به هندکو نه وه - د چنګیز خان د درندګۍ او بهیمتا
په سبب چې د عباسیانو ته شکست خورده لښکر دلته راور سېدونو
د دغه عباسیانو ته به هم پښتو نه وه - د نفراو ، د جدون ، ترین ، سواتي
او مشواني وغیره پښتون قبائل ته به پښتو وه -

پېښور ښار کښې ډېر پښتانه آباد دي - سید ، قریشي او بخاري آباد
دي - خو هغوئ هندکو وائي - مطلب دا دے چې د قام و نسل په لحاظ هندوستاني
په مناسبت دلته ډېر کم هندکي آباد دي البته د دوئ ته به "هندکو" ده -
چې د سکهه سلطنت سرکاري ته به ,, پنجابي ،، نه ورته او مشابهه وه - د
سرکار په ته به خبرې د مالي منفعت باعث وې - نو لازمي ده چې دا سې
حالت کښې هر کس د سرکار ته بې نه اهمیت ورکوي . د پاک و هند د
وېش نه آګاهو دلته په زرګونو سکهان هندوان په ښهري علاقو کښې
آباد وو - تا سو که د آثارِ قدیمه د لاسټو بریه سرکاري کاغذات او
ریکارډ وګورئ نو تا سو به حیران شئ چې په دغه کاغذات نه څو د

هند کې نوم ذکر شته دے او نه دلته چرې په هند کښ په مشاعره شوې ده
البته د پنجاب ځکو مکهی اوپښتنو په کښې مشاعرې او محفلو نه عام وو.
دلته د هغه زمانې د څو مشاعرو د انعقاد په ذکر اکتفاء کوو.
په $\frac{6}{22}$ ۔ پېښور کښې د پنجاب یوه مشاعره وشوه. په دغه مشاعره
کښې د پنجاب، د لاهور، امرتسر او راولپنډۍ د یارلس سکهان او دوه
مسلمانان شاعران شامل وو. د صوبه سرحد نه په دغه مشاعره کښې
فیروز دین، مورلی سنګه، مېتهو، پرتاب سنګه او امر سنګه خاص
شاعران وو.

مراسله نمبر آئی، بی، نمبر ۱۷۸۲ - سیریل نمبر ۲ بتاریخ $\frac{6}{22}$ ۱۰

د پېښور صدر بازار کښې په ۸ مئی ۱۹۲۵ء د هند و سبها د اجلاس
دوران کښې یوه مشاعره وشوه. په دې مشاعره کښې رام ناته آزاد،
نارنجن سنګه عمر، فیروز دین، راشد اختر، شیو رام، کوسواجی بهارت
کانسی رام، هیرا سنګه درد، میر هلالی، ملک سنګه، دلیپ سنګه،
هرنام سنګه او نانک سنګه شامل وو.

(رسائل نمبر ۳۶ سپیشل برانچ ص ۱۳۹ تا ص ۱۴۳)

په ۱۷ اکتوبر ۱۹۲۶ء یوه مشاعره وشوه چې په دغه مشاعره کښې
پنځه شپږ سوه کسان شامل وو. دې مشاعره کښې سپوران سنګه راټون
کوم سنګه کار نور، نانک سنګه عاجز، بهګوان سنګه بهان، هرنام سنګه صاحب
جوهر سنګه آزاد، نارنجن سنګه دیوانه، راجیشوار سنګه سپیشل ناک

جې سنگھ فقیر، سنتوک سنگھ پریم، هرنام سنگھ تیغ، نیرمال سنگھ نیرمال

هرنام سنگھ دُکهي، عطار سنگھ عطار، گورمکھ سنگھ مسافر، ملک سنگھ

مسافر او جگت رام پریم شامل وو۔

دغسې په ۱۸ اکتوبر ۱۹۲۶ء یوه بله مشاعره وشوه۔ دا

مشاعره د مقابلې وه۔

په دې مشاعره کښې فیروز دین فیروز، نانک

سنگھ عاجز، لال چند بسمل، پُران سنگھ پُران،

خاص شاعران وو۔

سیریل نمبر ۲۸ بي ۲۱ اکتوبر ۱۹۲۶ء

د انجمن بزم پنجابي پېښور تحت په ۵/۲۷ ۲۲ د مقابلې

یوه مشاعره په شاهي باغ کښې پینځه بجې ماښام

کېدونکې ده۔ د انجمن سیکرټری به خلیل الرحمان وي

مراسله نمبر ۸۳/۲۷ سپیشل برانچ سیریل نمبر ۲-۳۰

بتاریخ ۵/۲۷ ۲۱

د انجمن بزم پنجابي پېښور یوه جلاس په ۵/۲۷ ۲۲ په شاهي باغ

کښې وُشو۔ په دې مشاعره کښې مینهو او سائیں (احمد علی) په پنجابه

کښې نظمونه واورول۔ دوه سوه کسانو په دې مشاعره کښې شرکت

وکړو

مراسله سپیشل برانچ نمبر 38/ 67 کا بتاریخ ۲۳ 5/27

حیرانی ده چې د پاک وهند د ولېشی نه اکاهو د پښتنو، هزاره، ډیره اسمٰعیل خان، کوهاټ او خالصه استوګن مونږ نه څان د بناری، هزاريوال، ډیره وال، کوهاټی او خالصه وال په نوم متعارف کوُو. داسې څه حالات پیدا شول چې د کوم نوم نه دوئ متنفر وو او د نفرت و حقارت علامت وو او س مقدّس شو او فخر پرې محسوسه وی.

په هرحال مونږ دلته د دې سیاسی بحث نه ډډه اوُ اجتناب کوُو او کوشش کوُو چې د ادب او تاریخ په رڼا کښې د دې لوخیالا تو اظهار وکړو.

د پاک وهند د تاریخ په صفحات د یو خاص ټاټې او نسل په لحاظ د هندکو او هندکی ذکر قطعی نیشته. هندکو او هندکی د هندوُستان په مناسبت نومونه دی. هند یا هندوستان د دریائ جهلم او دریابې نربدا منځو مانه پرته علاقه وه. د دې کښې نهٔ خو د کنړ او کشمیر شامل وو او نهٔ د دریابې اٰمو او دریابې جهلم ترمینځ سیمه د هند حصه وه.

د پښتو ادب شاعر کامل کار خټک بن نامدار خان، بن اشرف خان هجری بن خوشحال خان خټک خومره په کمال وهشیارۍ د دې څلور مختلف جغرافیائی حدود تعین کوی:

سه

ستا دَ حُسن بادشاه ملک د کابل واخست
اوس به هند، دکن آخلی کشمیر وروا ورو

فارسی ادب او دَ نورو ژبو کتابو نوکښې دَ هندوستان په مناسبت ددې ځائې دَ وسېدونکو ژبه او ددې ځائې خلق دَ "هندی" په نوم یاد شوی دی. دَ فارسی ادب په تتبع کښې دَ پښتو ادب، شاعران دَ هند په مناسبت دوئ "هندی" یادکړېدی

دولت لوانی ۱۵۵۳ء تا ۱۶۲۸ء وائی

ښنانهٔ عرب مُغل زیات ساده دل دی
دَ دُنیا له مینې ډېر هُنر هندی که

کامګار خان ختک ۱۶۷۰ء تا ۱۷۵۲ء وائی

دَ تور خال هندو دې ځهٔ توره بلا ده
په افسوس وسله زاینسی له اُنا بکه

کاظم خان شیدا ۱۷۲۳ء تا ۱۷۷۸ء وائی

په هندی ادا ئې وکړې په ما چارې
ناه شیدا په زړهٔ ساده دَ "روه" افغان یم

علی خان ۱۷۳۷ء تا ۱۸۱۴ء وائی

ځهٔ قسم شوخه زلفې په مخ که هسې توبه شه
ښې دی غزولې دَ مصحف ته تور هندی

میاں نعیم متی زئ ۱۷۶۷ء تا ۱۸۱۷ء وائی

مدح وثنا صفت که ستا خلق په هر وطن کښي
عربان د ترک هندي افغان و درست مُغل

رکن الدین ۱۷۳۰ء تا ۱۸۰۰ء لیکی

دا نه وایم چي پښتون یم یا هندي
بلکه یمه زه خاکسار د دربندي

هند یا هندوستان د "تور" په معنی د پېر پخوا راسي عام مستعمل دو. د فارسی ادب د حافظ شیرازي تر ټولو زیاتي هغه مشهور شعر وګورئ په کوم کښي چي هغه د آشنا په تور (هندو) خال سمرقند او بخارا بخښش کوی

اگر آن ترکِ شیرازی بدست آورد دلِ مارا
بخالِ هندوش بخشم سمرقند و بخارا را

د پښتو په شعري ادب کښي هند او هندوستان د تورو لفظ تورو سترګو او تور خال وخط څخه عام تشبیه دے دلته د پښتو ادب د څینو شاعرانو د شعرونو څو مثالونه ورکوو

عبدالرحمان بابا ۱۶۳۳ء تا ۱۷۱۶ء وائی

په امید د زلفو ونښتم په دام کښي
دو هیلے ؤم ستا د دل په هندوبار کښي

چي د يار زلفي رخسار مي په زړه نقش شو

ځيل خلوت مي خراسان و هندوستان شو

ھ

ملک د هند و د حبش يې واړه زېر کړه

چي پيدا شو شهريار د نورو نه لقو

ھ

ستا په زلفو په رخسار يې ارمان شو بي وطنه

مسافر د هندوستان د خراسان دے ناماروح

ھ

اشرف خان هجري ۱۶۳۴ء تا ۱۶۹۴ء وائی

د هجران له تاوه آه که هجري سوکه

نور لوګي به يې که تل په هندوستان شپه

ھ

نه خټک دي هسم کړم په تورو سترګو

که رانه وي په صورت د هندوستان ستا

ھ

مصري خان ګګياني ۱۶۶۵ء تا ۱۷۱۹ء وائی

دا نه ماله سترګو د فراق اوښکي بهيږي

يا برسات دے لاندي کېږي د هند ملک و ديار

منتشر که يې بازار د ملاحت شي

د هند سکاني به نمک ورځيني پورکه

عبدالحمید بابا ۱۱۶۵ء تا ۱۲۳۸ء وائی ـه

چې په هند د تور زلفو ځوک غریب شي
د دیاره نه شي راتلی له دې غربته

ـه

که تور ځوک غندی سیاهي د هند د بنګلو
نوراني جلوه کوي ماته په دا تور کښې

ـه

دا افسوس کړي خال و خط د نو خطانو
چې آشنا شو د حمید په هند برات

ـه

د آشنا له خال و خطه معلومیږي
چې حمید به مسافر د هندوستان شي

کاظم خان شیدا وائی ـه

یکښې نښته سیاه مست د هغه سترګو
ګرز بدلې په درست هند په بنګاله یم

ـه

ستا د زلفو په لوري روانه خرام کاندي
که د روم قافله درومي هندوستان ته

ـه

محبّت غواړه د "روه" له سمن دویه
سیاهان د هند خبر نه دی له مینې

معز الله خان مومند ۱۱۷۵ه تا ۱۲۰۵ه وائی

دواړه شوندې یې مسیح زلفې کافرې
عجب ښځ شه په دا ملک د هندوستان کښې

د راتلو نورې د چا نیت دوباره نه شی
تا چې دواړه تورې زلفې هندوستان کړې

نیت د جار واته ته معز الله د هیچا نه وی
مه شه څوک غریب په هندوستان د تورو زلفو

د معز الله خان مومند دا یو شعر هم وګورئ چې باغبان او خط څخه
یکښې تشبیه دی۔ دې نه صفا ظاهره ده چې هند څخه د تعلق په بناء
د باغبان شکلونه هم تک نور وو

"خط یې ګوره له رخساره چې چاپېر شه
په ساتنه د دې باغ که باغبان خط"

علی خان هشتنغرے وائی

نور طالع زما د ترکو تورې زلفې
مسافر به مې اخېر د هندوستان که

محمدی صاحبزاده ۱۶۹۸ء/۱۱۰۹ھ تا ۱۸۰۶ء/۱۲۲۰ھ بن حضرت میاں عمر صاحب چمکني وائي

ه

تورو سترګو تورو څڅونه خلاص څوک شو
مړه شه هیڅ یو مسلمان په هندوبار کښه
داپه نه لفو کښې مې نه یږه په غم توبت شو
روهیله که بدنصیب په هندوبار کښه

میاں نعیم متی زئی وائي

ه

لکه ښکته شي پښتون په هندوبار کښه
نه یږه مي ډوب که د نوخطو ښتون هسي

ه

نه یږه مې هسې ستا په تورو نه لفو بند شه
لکه شي ساده پښتون په هندوبار پیښ

ه

چې دې همیش په هندوبار د نه لفو کوټې وهم
عین په مینځ د هندوستان کښې خلاص و نه

ه

د نه یږه په سرباندې چیچلي یمه مار د نه لفو
لکه پښتون شي بندیوان د هندوستان په مینځ کښې

قلندر آپریدے وائي

ه

"د سپین غره د تورو نه لفو په آرزو کښې
کوره راغله خراسان او هندوستان"

تاسو ولیدل چې هند او هندوستان د "تور" په معنی د پښتو ادب د کلاسیکي شاعرانو په کلام کښې عام مستعمل دے او د دغه هند په مناسبت هندي او هندو د دغه ځائې "تک تور" باشندګان دي. او س راځو چې د "هندکی" قوم هم ولکورو چې د پښتو ادب کلاسیکي شعرا یې د هندوستان د تک تور باشندګانو او د سپینو نکو د پاره عام راوړي-

پښتو ادب کښې خوشحال خان خټک (۱۶۱۳ء تا ۱۶۸۹ء) رومنے شاعر دے چې مونږ د "هندکی" قوم نه متعارف کوي. د هغه د مخاطبات نه صفا معلومیږي چې هغه د هند په مناسبت هندکی یاده وي.

د خوشحال خټک دې یو شعر نه صفا برېښي چې هغه د هند په نه ملک دري قومیتونه یاده وي. چې په دغه کښې یو د هند په نه ملک آباد د هندوستان باشندګان "هندکیان" دي -

پښتانه، مغل هندکی واړه هوښیار دي
لیونے خو یو خوشحال دے په دامینځ کښې

د پښتنو په معاشره کښې ۱۹۴۷ء نه مخکښې د "هندکی" متعلق تصور دا وو چې دوئ تک تور او پښتانه ښکلي ښائسته سپین دي-

خوشحال خان خټک دغه تصور داسې بیان کوي.

هندکی تور سکان دي له موروپلاره ؛ پښتانه واړه سره سپین اسے یاره

ﻫ

تاثیر که تخم آب و هوا لري
نه واړه ګڼه له کرګاره

خوشحال خان خټک د ،، هندکی ،، متعلق وائي ﻫ

چې داخل په جمع خوږ نه دي په دوکښې
هغه واړه جټ هندکي د هندوستان دي

ﻫ

د هندکي په تاړه کښې مکر حرکت
لکه پیاز پکښې د پیاز ګنده نکهت

ﻫ

ذات یې خبیث دې هندکي هر ګوره ګوره
چې ترې پیدا نه شي یو خوجبینه

بل ځائي وائي ﻫ

آل اولاد چې د آدم دے — ښه یې خوئي ښه یې روی[1]
هندکے آل اولاد د کوم دے — چې نه روئي لري نه خوئي
خو د طمع یا د دار دے — د وفا یې نشته بوئي

خوشحال خان خټک وائي چې د هندوستان په زمکه ښته "هندکیانو"
کښې مهمان نوازي او د ایران په خلقو کښې د توري او شمشیر زني کمال نشته

---

[1] ،، روی ،، په معنی د شکل و شباهت ۱۲

د دوئ په مقابل کښې پښتانه او تورانیان د مهمان نوازی او شمشیرزنی دواړه اوصاف لری۔

سه

نهٔ د پښتو بې برکت شته د هندکیو
نهٔ د توري بې برکت د ایرانیو
دواړه توکه مسلم دی کهٔ یې گورې
په دا ملک کښې په افغان په تورانیو

خوشحال خان خټک د دهلی او پنجاب ترمینځ آباد "جاټ" قوم چې مونږ بې دولته د هندکی په نوم پېژنو داسې مخاطب دے

سه

کهٔ د جټانو څهٔ برکت وے
یا ئې څهٔ عقل څهٔ مصلحت وے
د هندوستان د هیڅ کار نهٔ وو
دغه هم د دوئ د سلطنت وے

خوشحال خان خټک چې بولاق پښتنو نه د خپلې ناراضگئ اظهار کوی نو د هغوئ عادتونه هندکیانو څخه مشابه کوی

سه

د پړې پښې لری حیلې مکرونه
پښتون یې مهٔ بوله بولاق هندکی دی

خوشحال خان خټک د عیسی خېلو پښتنو چونه د هندکیو نیکو سره مثال ورکوی

سه

د هندکیو په حساب دی عیسی خېلې
د سنبلو چونه څهٔ خو سر پېښې نی

د "هندکي" متعلق رحمان بابا وائي ؎

ډېر هندکي په جهان ګرځي ځاي په ځاي دي
عشق عالي پايه ده هېڅ او د ده لا ځاي کړه

د رحمان بابا دې شعر اولنۍ مصرعه کښې د هند د لښکرو بالعموم
او دويمه مصرعه کښې د هندوستان د يو برخې "پنجاب" باشندګان
بالخصوص د "هندکي" په نوم ياد شوي دي ځکه چې د هيرې رانجا
د عشق و محبت داستان پنجاب ځخه مخصوص دے.

مصري خان ګګياني ليکي ؎

چې په ذات مغل افغان دي دوئي له اصله غيلمان دي
او په تېره تور هندکي نور رونګي سپي له دربه درشه

محمدي صاحبزاده وائي ؎

ستا له زلفو ستر ګې ډېر کاندي خونونه
ډېر ښي ترس دے تر هندکيو قزلباش

؎

ښي وفا نه د وفا موندل دروغ دي
د مغل رنګ ته په ځه غواړې له جبهه

د پښتو نثر شاعر خيال شاه علي خان هشتنغرے وائي
ستا له زلفو شوندې زياتې خونخورې دي
له هندکي نه ظلم زيات کړي قزلباش

له جاټ هندکي !!

سه دا یې خال په سینه خُله کښېنو دحېرانه یم
که چینې ته دَ حیا نو ناست هندکې دے

حبیب الله ۱۷۴۷ء تا ۱۷۷۲ء لیکی ـــه

دِ بِر هند کی رادرومی پېښور او هم کابل ته
کله کچایادی ئې لــه هېره له رانجا

دَ نادرشاه افشار دَ هند په مُغل سُلطنت دَحملې په وخت دَ جهلم
دَ روهتاس په علاقه مېشته یو پښتون شاعر میاں نقیرالله $\frac{۱۷۳۹ ع}{۱۱۵۱ ه}$
کښې دَ " فوائد نقیرالله " په نوم دَ لنډ بحر یو مثنوی کتاب لیکی؛

هغه وائی؛ ـــه

نه ماهسې نېت وو حا نه؛ چې یې کړمه هند کو خوانه
وَلېکن همراه مې نا سه پښتانهٔ وو خوش انفا سه
دوئی سوال هم په داشان کړو یعنی دا پښتو بیان کړو
نور مې دا په پښتو نه به کړو بیان واوُره طالبه
بیا توفیق غواړم له خدا یه؛
چې هند کو یې کړم نېکرا یه

یوُبل ځائې وائی؛ ـــه

اګرچې جوړنهٔ دے قانون کښې دغه نظم په مضمون کښې
نهٔ الفاظ یې برابر دی نهٔ یې نورنخهٔ دَ هُنر دی
خوزه ما مراد نوری بیا ره ؤ پندوُل دی برخوردار ه

په پښتو په هندکو بند شي
چې عام خلق بهره مند شي

میاں نفقیر الله روفات ۱۱۹۰ھ ۱۷۷۶ع د کتاب په خاتمه وائی

شعر

شه اکاه له دې حالا ته — وایم پس له مناجا ته
د روتاس ملک دے پروانه — یم له هند وطن چې جانه
ودهکرهه نومې دلدا ره — چې ئې موښ مقام دے یا ره
په رنیکۀ مې دغه ځائې وو
بزرگان مې د بل ځائې وو

د میاں نفقیر الله د هندکو ژبې په حقله دې ذکر څخه صف ښکاري چې پښتو د جهلم په سیمه ویونکې ژبه لا تلړاد هندکو په نوم پېژندله.

د پښتو ژبې مشهور و معروف شاعر حضرت مولانا رکن الدین په خپل کتاب «مناقب غوث الاعظم» کښې لیکي:

شعر

پښتو ژبه به هر چا پوهوا غند له:
له هندکیو به کړکړه وژبه بلله

تاسو وګتل چې د پښتو ادب کلاسیکي شاعرانو د هند په مناسبت "هندکی" یاد کړي دي. د هند خلق تک تور وو، نو په دې اساس د تورو ناقلو، تورو ستر ګو او تورو خال وخط څخه تشبیه دي تاسو دا هم ولیدل چې د "هندکی" نوم پښتنو په ورومبي ځل د هندوستان خلقو د پاره متعارف کړو. دا ځکه چې اوس د تورو زیبو ځینې تاریخي کتابونه هم شته دي چې دغه کتابونه د "هندکی" په حقله څه لیکي. او دلته پښتنو یا په نورو علاقو چې د نورو نسلونو خلق آباد دي او نن سبا ځان د "هندکی" په نوم متعارف کوي آیا دوی واقعي هندکیان دي؟

نو دلته د څو کتابونو اقتباسات او تحریرات رانقل کوم ممکن چې د دې څو مثالونو څخه د "هندکی" لفظ حقیقت واضح او صفا شي.

محمد حیات خان لیکي:

"خاص شهر پشاور میں متفرق اقوام کے لوگ بستے ہیں"

(حیات افغانی ص ۵)

محمد حیات خان یو بل ځای لیکي:

"جٹ واعوان وغیرہ لوگ معروف "هندکی" اس علاقہ میں بہت ہیں اور متفرق اطراف سے آ کر آباد ہوئے لفظ "هندکی" سے وہ لوگ مراد ہیں کہ جو اصل پښتون نہ ہوں اور یہ سب لوگ ہمسایہ کہلاتے ہیں۔ اکثر اعوان بسبب قحط اور خشک سالی اس سرسبز اور زرخیز

(له حاشیه په وړاندې مخ ذکور دی)

علاقہ میں آ کر آباد ہوتے رہے۔

(حیاتِ افغانی صفحہ ۵)

گوپال داس لیکی:

"یہ ھندکی لوگ مشرقی افغانستان کے جملہ اضلاع میں پھیلے ہوئے ہیں اور سب ھندی ہیں۔ دریائے سندھ کے مشرقی جانب سے آ کر آباد ہوئے۔ اِن میں ایک تو جٹ پنجاب کی اکثر اضلاع میں زمینداری پیشہ ہیں اور بہت جٹ سندھ میں بھی آباد ہیں۔ بلوچوں اور دامان اور بنوں اور پشاور کے ضلع میں بھی ہیں.......... دریائے سندھ کی مشرقی طرف کے آنے سے ھندکی کہلائے

(تاریخ ضلع پشاور صفحہ ۵۵)

گوپال داس د ہندکی اوقام پہ لحاظ د پیښور ښار د وسیدونکو ذکر داسې او کړی:

"یہ سب لوگ اگرچہ زبان فارسی، اُردو، پشتو سمجھتے اور بولتے ہیں۔ لیکن خاص زبان اُنکی مشابہ بہ زبان پنجابی ہے۔

---

لہ همسایه، فقیران یا خدمتګار هغه خلق وو چې د پښتون، خان، نواب زیرِ سایه به کور ونو او ځمکو کښې مفت وسیدل او د دې په عوض دوی بلا معاوضه د مالکِ مکان نوکران وو۔ د پښتون مشر فرض وو چې دوی ته دوه وخته ډوډۍ ورکړي، ملبوس ئې ورکړي او د دوی د ننګ ناموس تحفظ وکړي۔

.........اور مالکانِ زمین اِس جگہ کے افغان، باغبان اعوان، سیّد، مُغل، ککی زی، مُلاّ، قاضی خیل، عرب بجوڑی، شاطر باشی، فقیر، اخون زادہ، لوہار، ترکھان کھتری برھمن، اروڑہ، اوداسی، بیراگی، جوگی، نہنگ پوربیا وغیرہ ھیں۔ اِن میں سے کوئی بہ طور ورثہ جدی، اور کوئی بہ ذریعہ زرِ خرید قابض زمین ہیں مردم شماری و خانہ شماری یہاں کی حسبِ ذیل ھے

| ھندو | ۹۳۳۱ |
|---|---|
| مسلمان | ۵۱۶۱۶ |
| خانہ جات | ۱۴۶۲۹ |

دَ " ھندکی " پہ حقلہ انگریز مؤرخین لیکی:

**Hindki , the name given to the subject Indian races, inhabiting the pathan country**
**(The problem of the N.W.F.P. by G.C. Collin Davies P - 44)**

ترجمہ: " ھندکی " دَ ھندی نسل خلقو نوم دے چې دَ پښتنو په علاقه کښې اوسیږی.

**The Hindus state , they immigrated many generations ago from the Punjab, They have adopted many of the wild habits and martial qualities of their Muhammadan Lords and are singularly careless of restrictions about food and drink.**
**(Frontier and overseas expedition from India Vol : II P- 9)**

ترجمہ: ھندوان وائی چې دوئ دلته ډیر پخوا پنجاب نه راغلل دوئ دَ مسلمان مشرانو نه دَ طبیعت او سپاهیانه

صلاحیتونه خپل کړل او د خوراک څښاک پابندیو نه انفرادی طور نې پروا دی۔

The frontier tribe whether within or beyond our border , has almost without an exception a very distinct corporate existence, each tribe and within each tribe each clan, occupying a clearly defind tract of country, though they are in the Indus Valley often the owners merely, rather than the occupiers of the country, the land and smaller villages being largely in the hands of a mixed population of Hindu origin, who cultivate subject to the superior rights of the pathans. The people are included by the Pathans under the generic and semi-contemptuous name of Hindki-a term very analogous to the Jat of the Baloch frontier and which includes all Muhammadans , who being of Hindu origin , have been converted to Isalm in comparatively recent times.
(Frontier and overseas expeditions from India VOL : I . P - XIII)

ترجمه،

" زمونږ د سرحد دننه دی او که بهر، خو سرحد ی قبائل بیلا بیل ستنشا متحد وُسی۔ هره قبیله او ذیلی قبیله په یو خاص علاقه قابض دی۔ دوئ (پښتانهٔ) وادیې سنده کښې محض مالکان دی۔ قابضین نهٔ دی۔ جائیداد او بانډه جات اکثر د هندوانو په قبضه کښې دی او دوئ دغه زمکې کری۔ خو اصلی ملکیتی مالکان پښتانهٔ دی۔ دوئ پښتنو ځان څخه د یو داسې نسل په حیث شامل کړی دی چې په یو سپک " هندکی " نوم یې یادوی دا اصطلاح د بلوچ په سرحد پرانهٔ جاټ څخه مشابهه ده۔ دې کښې هغه مسلمانان هُم شامل دی چې اول هندوان

ډو. نو اوس ادس يې اسلام قبول کړے دے.،،

انګرېز محقق بيليو ليکي:

The Hindki people are Hindus of the Kshatri or military caste. They are wholly occupied in trade and form an important and numerous portion of the population of all the cities and towns and are also to be found in the majority of the larger villages. This enterprising people transact all the banking business of the country and hold its chief trade in their own hands. By these means they prove useful to the Afghans who indeed could not get on without them and their presence in the country is consequently a desideratum. And the Hindkis, on their part, though they appear to thrive and live happily, nevertheless labour under many disabilities and restrictions of their liberty, the endurance of which is a proof of the profit they extract from those amongst whom they dwell as exiles. the Hindkis, besides paying a high capitation tax termed "Jazia" are denied many privileges, enjoyed by other races in the country who profess the Muhammadan religion. They are not allowed to perform or observe any of their religious ceremonies in public , nor are they allowed to evidence in a court of justice, nor to ride on a horseback unless bare backed. (Afghanistan and its people by H.W. Bellew P - 18)

ترجمه: ،،هندکی،، د هندومت د کهشتری یا فوجی ذات خلق دی.

دوئ تجارت پېشه دی. د دوئ اکثریت په ښارونو کښې

ډسی. او کښې لويو کلو کښې هم آباد دی. دا تجارت پېشه خلق

بېنکاری څخه پېوست دی او د علاقې ټول لويې تجارت

د دوئ په لاس دے. دغه وجه ده چې دوئ پښتنو د پاره

مفيد دی. او دوئ نه يې بغير ګذاره مشکل ده. د دوئ

موجودګی يو اهم ضرورت دے خو ،، هندکيان ،، که يو اړخ کامياب

وخوشحال بنکاری نو بل اړخ دوئ په غټ مصيبت ګرفتار

دی۔ د دوئ په آزادئ پابندی ده د چا تر منځ چې دوئ وسی
نو لکه د یو اجنبي او د بې وطنه شان وخت تېروی۔ دوئ ته
دغه کته کرانه پرېوزی۔ دې نه علاوه هندکیان د ورنایات
انفرادی ټیکس یعنې جزیه هم ورکوی۔ نو بیا هم د نور
مسلمان نسلونو په نسبت هر قسم سهولیات نه محروم دی
دوئ نه دا اجازت نشته چې خپل مذهبی رسومات په ډاګه
ادا کړی او نه ورته عدالت کښې د ګواهی ورکولو اجازت
نشته۔ دوئ په زین کړی اس سورېدے نه شی او په اس به
هله سورېږی چې په آس زین نه وی۔

I have also included Kabli Pashto and Peshawari , the latter may refer to the Hindko dialect , spoken by the Hindu population in Peshawar. ( Census of India 1891 by E.D. MacLagan P - 270)

ترجمه: ما په دې کښې کابلی پښتو او پښاوری ته به هم شامل کړه۔
موخر الذکر هندکو ځنځه تعلق لری چې د پېښور هندوانو ئې وائی۔

The Awans, Kashmiris and other Hindkis constituted the class of Mechanics, artificers and petty traders throughout the district (Peshawar) They are styled collectively Hamsaya (Dependant) or Fakir (Vassal)
(Punjab Gazetteer , Peshawar District 1897-98 Page 143)

ترجمه: اعوان، کشمیریان او نور هندکیان د کاریګرانو او کسب ګرو
ډله ده او پېښور ضلع کښې واړه تجارت پېشه دی۔ دا ټول
خلق همسایه یا فقیران دی۔"

**The Gujars are especially numerous in Yusafzai, they are distinctly of Indian blood and are probably descendants of the original Hindu population of the country**
**(Punjab Gazetteer Peshawar District 1897-98 page-142)**

ترجمه: د یوسف زئی په علاقه د ګوجرانو خلق ډېر زیات دی. صفا
ظاهره ده چې دوئ هندي نژاده دي او ګڼه چې د دې علاقې د
زړو هندوانو اولاد دے.
ګریرسن لیکي:

**" Hindki or Hindko, both of which means the language of Hindus, are chiefly used in the Trans-Indus districts where Pathans speak Pashto and Hindus Lahnda"**
**( The Linguistic Survey of Pakistan P - 234)**

ترجمه:
"هندکی ده او که هندکو ده، د دواړو مطلب د هندوانو ژبه
ده چې د دریاب سنده پورې غاړه په هغه اضلاع کښې
ویلې شی. چرته چې پښتانه پښتو او هندوان لاندا ژبه وائي"
ګریرسن یو بل ځای کښې لیکي:

**Hindko is spoken only by scattered Hindus.**
**( The Linguistic Survey of Pakistan P-241 )**

ترجمه: "هندکو" محض د خورو ورو پراته هندوانو ژبه ده"

---

۱ تاسو که د ګوپال داس تاریخ ضلع پېښاور وګورئ چې ۱۸۶۹ء تا ۱۸۷۴ء پورې مانه
سوکېني یې د کپتان ای-جی هیسټنګز مهتمم بندوبست ضلع پېښاور د مشورې تحت مرتب کړې وه
نو د دې علاقې هر لوېي درو کي کلي کښې هندوان آباد وو او د دغه هندوانو
ژبه "هندکی-هندکو" وه یې.

اولف کیرو لیکی:

**He was after all a man from down-country, what the pathans a little contemptuously call a Hindki.(The word means, not a Hindu but a muslim from Hindustan or even from the Punjab) "The Pathan" by Olaf Caroe Page 303".**

ترجمہ: بہرحال هغه (سید احمد بریلوی) دَ ښکته ملک (هندوستان) سړے وو چې پښتانه یې لږ په سپک نوم "هندکے" یادوی (دَ دې لفظ مطلب صرف هندو نه دے بلکه دَ هندوستان او حتی چې دَ پنجاب مسلمان هُم مراد دے)

دَ اُردو او انګریزۍ په څینې تاریخي کتابونو دا څو مثالونه او اقتباسات دَ "هندکی" نوم وضاحت په خقله تاسو ولوستل۔ حقیقت دا دے چې پیښور دَ مختلف پیشه ور خلقو دَ استوګنې مسکن دے او دَ نسل په لحاظ دلته مختلف قسم خلق آباد دی۔ دَ سکهه سرکار دَ سُلطنت په سبب "لاندې"، یا هندکو ژبې زیات اهمیت بیا موند۔ او "هندکی" نه علاوه دَ نورو نسلونو خلقو هم دا کاروباری او تجارتی ژبه اختیار کړه۔ چې دوئ کښې دَ پښتونو بې ویونکی هُم شامل وو دَ دې فائده دا شوه چې دَ پنجاب تجارت پیشه قوخه دَ دوئ ربط او تعلق ساتل آسان شول۔

ګوپال داس لیکی:

"باکرام قوم، اعوان، قصاب، دُرّانی، مُغل، سیّد بُخاری فقیر جوګی، باغبان، کهتری برهمن، اورکزی، افغان رانی زی افغان کیتانی، میاں خیل، محب خیل افغان، تلرزی افغان، چونکه یه ایک شهر هے اور اکثر مردم مختلف اقوام اِس پر قابض رہے" (تاریخ ضلع پشاور صـ۵۲۹)

تاسو کښې د ابن، ډبلیو، ایف پي مختلف ګزیټیئر را واخلئ نو د انګریز سرکار د مردم شمارې نه به ثابت شي چې هغوئ د دې صوبې خلق په دریو ډلو کښې ویشلي کړي دي.

۱: پښتانه.

۲: نورنسلونه.

لکه اروړه، اعوان، باغبان، بلوچ، برهمن، ګکهړ، ګورکهه، جاټ، کشمیري کهتري، خوجه، مغل، پراچه، قریشي، راجپوت، سیّد، شیخ، یورپین وغیره

۳: کمین ذات

په دې کښې ښیاروان، چمیاران، چوهوړیان، درزیان، دهوبیان، ګوجران جولاګان، کلالان، لوهاران، ماڼکیان، مراثیان، ډمان، موچیان، موسلیان، نائیکان، قصابان، رنګ رېزان، زرګران او نوکانیان شامل وو.

دلته د کو هاټ د سیمې د مردم شمارې یوه خاکه د مثال په طور کوم ورکوم

| ۱: | ۱۸۹۱ء | ۱۹۰۱ء | ۱۹۱۱ء |
|---|---|---|---|
| ۱: پښتانه: | ۱,۲۵,۸۱۴ | ۱,۰۳۳,۶۲۳ | ۱,۰۴۷,۰۸۳ |
| ۲: نورنسلونه: | ۴۶,۸۳۳ | ۵۵,۹۸۵ | ۴۸,۷۹۲ |
| ۳: کمینی ذات: | ۳۰,۵۲۸ | ۲۸,۲۵۷ | ۲۶,۸۱۵ |

د ضلع پېښاور مردم شمارې په دې ډول وه

| | ۱۸۹۱ء | ۱۹۰۱ء | ۱۹۱۱ء |
|---|---|---|---|
| ۱: پښتون | ۳,۳۹,۰۶۹ | ۳,۷۰,۶۴۳ | ۴,۱۴,۱۰۰ |
| ۲: نورنسلونه | ۲,۰۰,۹۶۵ | ۲,۲۲,۱۹۹ | ۲,۵۹,۳۴۵ |
| ۳: کمینی ذات | ۱,۷۱,۷۶۱ | ۱,۹۵,۸۶۵ | ۱,۹۱,۵۶۴ |

د پاک و هند د وېش نه اګاهو پېښور ښار کښې د سکه او هندو مذهب پیروکارو اکثریت آباد وو. د دوئ مالي او معاشي حیثیت د مسلمان په مقابل مضبوط او مستحکم وو. دغه وجه وه چې د انګرېز سرکار په مخالفت کښې یو اړخ د کلو بانډو پښتانه وو، نو بل اړخ د پېښور ښار سکهان او هندوان وو چې د مختلف تنظیمونو تحت سرګرم عمل وو.

خو ۱۹۲۶ء کښې چې په بنګال کښې هندو انتها پسند راج پال، "ډرنګیلا رسول" او کالي چرن د "پد ام پران" په نوم د امام حسن په تضحیک اشتهارونه چاپ کړل نو د پېښور خواوشا کلي د سکه هندو خلاف راپورته شول او هندو مسلم او سکه مسلم نفرت انتها ته ورسېدو. نتیجه دا شوه چې پېښور ښار کښې آباد نابون حال او ذهني طور پسمانده کس ور هندکي مسلمانان ناړه ور شول او د تحریکِ خلافت او نورو جلسو جلوسونو کښې د دوئ شمولیت شروع شو.

د ۱۹۴۷ء وېش نه وروستو سکهان هندوان بهارت ته لاړل. د ښار ښاریان اسوده حال شول، کاروباریان شول او د "لاندا" ژبه ویونکي لانډیان په هندکیانو مشهور شول.

هندکو دَ "هندګو" مخفف او مبتدل لفظ دے "هند" په معنیٰ دَ هندوستان او "ګو" دَ فارسي ژبې دَ ګفتن مصدر څخه اخذ صیغهٔ امر دے۔ چې معنیٰ یې "وایه" ده۔ دَ "ګو" معنیٰ "ووایه" ده۔ خو دَ "ګو" دغه ټکے که نورا لفاظ څخه دَ مرکب شکل اختیار کړي۔ نو دَ مرکب حالت کښې "ګو" اسمِ فاعل شي او دَ ویونکي په معنیٰ مستعمل شي لکه دُعاګو، بدګو کلمه ګو، قانون ګو، راستګو، حق ګو وغیره[1]

مطلب دا چې "هندګو" یا "هندکو" په معنیٰ دَ هندوستاني ژبو ویونکے دے او هغه کسان چې دَ هند په ژبه لکه پنجابي، لاندا، هندي، مرهټي، بنګالي، ګجراتي وغیره به یې خبرې کولې۔ پښتنو دغه خلق "هندګو" یا "هندکو" یعني دَ هند په ژبه خبرې کوونکي بلل دَ ګ په ځای

---

[1] وګورئ (۱) فیروز اللغات "فارسي" ص ۳۱۶ (۲) نسیم اللغات "اردو" از سید نسیم امروهي ص ۷۸۸ (۳) لغات سعیدي - از ایچ - ایم - سعید کمپني کراچي ص ۶۵۳ (۴) نور اللغات جلد چهارم از مولوي نور الحسن کاکوروي ص ۸۷۰ (۵) اردو پښتو لغت جلد دوم۔ از سید انوار الحق کاکاخیل - مرکزي اردو بورډ ص ۲۱۱۸ -

"ړک" او د "ک" په ځای "ګ" پښتوکښې مستعمل دے لکه د "وړدک" په ځای "وردګ" د "کوړکان" په ځای "ګوړګان" د غسې د کوټه او قندهار په سیمو د غلقو ز غلکو) په ځای غلګو.

تاسو که د پښتو د نورې رسم الخط خطي نسخې را واخلئ نو دغه ټول کلاسیکې منابع کښې د "ګ" "نورو" "ک" تحریر دے لکه د ځرګند، ګل، وګوري، ګرزي، غنکه، ګرېوان په ځای ځرکند، کل، وکوري، کرزي غنکه، کرېوان تحریر دي.[1]

دغه وجه ده چې د پښتو په عام خبرو اترو او تحریرات کښې "هندکو" د "هندکو" شکل اختیار کړو او د "هندکو" په ځای "هندکو" عام مستعمل شو او د هندوستان په ژبو غیره کو ونکو د "هندکو" په نوم شهرت بیا موندو او د ژبات استعمال په سبب اسم لسان شو.

د "هندکو" په مناسبت لفظ "هندکی" دے چې د هندکو حرف علت "و" په "ی" بدل شو ېدے. او دغه نسبت لسانی اسمِ فاعل "هندکی" ترې جوړ شوے دے چې د پښتو د قواعد په اصول یو عام معمول دے. لکه ژلمو نه ژلمی، لړکو نه لړکی.

د پښتو ژبې د ګرامر یو عام اصول دا هم دے چې د کوم اسم په اخر کښې غونده ی یا معروفه "ی" راشي نو د جمع په حالت

[1] ادبي ستوري جلد اول ص۲۲، ۴۴، ۲۱۶ ته مخامخ د خطي نسخو عکسونه.

کښې دغه "ی" نه ورو ستو "ان" لګول شي لکه دوبي نه دوبیان، موچي نه موچیان، چوسی نه چرسیان، قاضي نه قاضیان، پنجابي نه پنجابیان سندهي نه سندهیان، بلوچي نه بلوچیان او داسې نور ډېر اسمونه، د "هندکی" اسم هم د پښتو ګرامر په دغه اُصول ادا نه لري او په دغه اساس د "هندکی" نه هندکیان شو یدے چې په نورو الفاظو کښې د هندکو نه هندکویان سا نه شوے دے۔

تاسو د "هندکی" سرخط لاندې ولوستل چې هند د تور په معنا دے او د هند په سیمه چې څوک استوګن وو پښتو د هندی، هندو او هندکي په نوم پېژندل. دا مو هم وکتل چې هندکی هغه خلق وو چې هندوان وو او دلته پښتنو څخه وسېدل او مختلف کسب و هُنر څخه وابسته وو. څوک مسلمانان شول، دلته مستقل پاتې شول او ځینې هندوان پاک بهارت ولېږل نه پس واپس هندوستان ته لاړل چې په دې کښې اکثر د اوچت ذات لکه برهمن، کهشتري او ولېش وو.

د ګرامر او قواعدو بحث نه قطع نظر د هندکي په مناسبت هندکو یا د هندکو په مناسبت هندکي نوم په ورومبی ځل پښتنو متعارف کړو چې د روایاتو او تحریراتو ترمخه د کرکې، حقارت او نفرت علامت وو "ی" په "و" او "و" په "ی" اوړېدل د پښتو د سختې او نرمې لهجې عام اُصول دی۔

اوس موږ د "هندکی" د اصل نسل دغه بحث پورې بند دو او د

"هندکو" ژبې په اصلیت او ساخت رڼا اچوو. ګریرسن یو انګریز
ژبپوهان محقق وو چې د پاک بهارت په ژبو باندې یو ضخیم تحقیق
د "هند د ژبو جائزه"

**Linguistic Survey of India**

په نوم ۱۹۲۸ء کښې مکمل کړے دے -۱۸۸۶ء کښې د ویانه په مقام کانګرس
ته د هندوستان په ژبو د تحقیق دپاره چې یو تجویز پیش شو نو ۱۸۹۶ء
کښې جارج ګریرسن دې مقصد دپاره مقرر شو. د انګریز سرکار د مکمل تعاون
او هر قسم وسائل باوجود دۀ دغه لوئې کار د شب و روز په محنت دېرش
کاله کښې پوره کړو.

د دغه لوئې ضخیم کار هغه برخه چې د پاکستان د ژبو نه مخصوص دۀ-

**Linguistic Survey of Pakistan**

په نوم پینځه جلده کښې چاپ دے چې دغه کښې تلورم جلد سندهی او
لاندا متعلق دے-

د ګریرسن په نزد د "هندکو" هیڅ حیثیت نشته بلکه دا لاندا ده
چې د مرکزي او مشرقي پنجاب د پنجابۍ نه قطعي مختلف ژبه ده. دا ژبه
د پنجاب په شمال مغرب او د دریایې سنده په دواړه غاړه آباد
خلق وائي. هغه وائي چې پنجابي کۀ د مشرقي او مرکزي پنجاب ژبه ده نو
"لاندا" د مغربي پنجاب ژبه ده. د لاندا مطلب دے "مغرب دی بولی"
یعنی د مغربي پنجاب ژبه "هغه یکې چې دا ژبه د چناب د غاړې رام نګر

ر ږومبنۍ نوم رسول نګر ) نه راپورته د دریاب سنده دواړه غاړو
پورې وېلې شي.

**The Language of Lahnda " follows the western border of Hazara over nearly the whole of which Lahnda is the Principal language----- besides this Lahnda is spoken by Hindus in the trans-Indus districts of Peshawar, Kohat and Bannu.** ( د پاکستان د ژبو جائزه. ګریرسن )

ترجمه ، لاندا د هزارې د مغربي سرحد په ټوله علاقه هم
ژبه ده. دې نه علاوه د دریاب سنده پورې غاړه
پېښور، کوهاټ او بنو کښې هندوان دغه ژبه وائي "

ګریرسن لیکي چې ،
"لاندا د داردِک[1] **Dardic** ژبو د کورنۍ څخه یوه
ژبه ده دارډک ژبې په هنزه، دیر، کوهستان، چترال،
ګلګت او کشمیر کښې وېلې کېږي. هغه وائي چې سنسکرت
لیکوالو د دارډک ژبه د پساچه نوم پېښ نده خو لهندي
ادب په دې وجه دغه نوم متروک کړو چې ؛

**They are described as a clan of Demons, of terrific appearance and brutal character. The name is said to imply that they were eaters of raw flesh.**

ترجمه : د دوی تعلق د شیطانانو قبیلې څخه وو ویره ونکې شکل

---

[1] د بطلیموس = داردرای - د سټرېبو = دارد ی - د پلیني = دارد ے - د سنسکرت = داردا -

او ظالمانه کردار یې وو. دا نوم یې ځکه وو
چې دوئ کچه غوښه خوړه.
جارج ګریرسن لکه د سنسکرت لیکوالو دا دړک په ځای "پیساچه"
نوم ته اهمیت ورکړو او د هندي لیکوالو برعکس یې دې قدیم
نوم ته رواج ورکړو.

**It has been seen when dealing with the languages of these countries ( Lahnda and sindhi) that evident traces of this Paisachi influence exist at the present day.**
**( Linguistic survey of Pakistan Vol : IV - P-4)**

ترجمه: "لانډا او سندهي ژبو څخه تعلق کښې صفا معلومیږي
چې اوس هم په دې ژبو د پیساچه بنګارو اثرات
موجود دي.

د جارج ګریرسن ۱۸۵۱ء تا ۱۹۴۱ء د دې دومره لوی تحقیق او
ریسرچ څخه څرګنده ده. چې پښتنو د هندکو یا هندکي په نوم کومه ژبه پیژندله
دا په حقیقت کښې د اندو آریائي خاندان د مغربي پنجاب "لانډا" وه. چې د
صوبه سرحد په مختلف علاقو کښې په مختلف لهجائي فرق ویلې شوه. د
سکه سلطنت نه اګاهو د دې ژبې زیات تعلق د پنجاب د سیمې نه
راغلو هندوانو څخه وو. نو په دې وجه دې ژبې د هندکو او هندکي
په نوم شهرت بیا موند. خو هر کله چې د پنجاب په سیمه د سکهانو د بربریت
او وحشت نه دلته مهاجرین راورسېدل نو د دې ژبې د ویونکو په تعداد

کښې کافی اضافه وُشوه خو دغه مهاجرین او پناه گزین خپل ځان د هندکو په نوم
متعارف نه کړو بلکه د علاقې په مناسبت یې خپل تشخص قایم کړو
دغه وجه ده چې چا ځان ته ښاریان یا پېښوریان ووې او څوک خالصوال
شول. چا ځان کوهاټیان ډېره وال یا هزارې وال حساب کړو. د
سکه سو کار دوران دې ته چې په دې ایمه زبردست استحکام حاصل کړو
او دغه زمانه دا ژبه په د هندکو او پنجابۍ په نوم یادېده چې هندو
او سکه ټوله وابسته ژبه باڼ نې وې. البته د پاک و هند د ولس نه
وروستو "هندکی" نوم عام مستعمل شو چې یو زمانه د پښتو، اردو
او انګریزیکونکو په نزد محض د هندوانو ژبه وه.

مونږ دلته د جارج گریرسن د تحقیق او څېړنې ځنې ټوټې اقتباسات
رانقل کوو چې د دغه تحریرات په رڼا کښې حقیقت واضح او صفا شي.

د ۱۹۰۱ء د پاک و هند د مردم شماری په رپورټ کښې ډاکټر سر جارج گریرسن د لاندا په حقله لیکي:

Lahnda or the language of the west (Punjabi – Lahnda the Boli) It has no literature, and has no standard form, so that it is rather a group of connected dialects than a language with a definite standard. The Eastern boundary of Lahnda may be taken as the river Chenab from the Kashmir Frontier, down to the Town of Ram Nagar in the district of Gujranwala. Thence it runs in a straight line to the North-west corner of Montgomery and across that district to the South-West corner. Its northern boundary may be taken as coinciding on the East with the range of mountains forming the southern limit of the Kashmir valley, while to the west it skirts that valley and reaches as far North as the watershed dividing the Indus from the Jehlum valley. Hence it is bounded on the west by the Kohistani of the Indus valley, till we reach the Hazara district. Thence the western boundary may be roughly taken as the Indus itself. These eastern and western boundaries are, however, indefinite. (Census of India 1931 by Mallam and Dundas. P -175)

ترجمه ؛ "لاندا" یا د مغرب نه به ( پنجابي کښې لاندا ) دی بولی ادبي علوم نه لری . او څه خاص اهمیت یې نشته . د ژبې نه ژبیات دا د مختلف لهجو مجموعه ده - د "لاندا" مشرقی حدود د کشمیر د سرحد د دریایی چناب نه څې په بنګته د ضلع ګوجرانوله د رام نګر پورې . بیا شیخ په نبخه د منټګمری شمال مغرب آخری حد او ډغه ځایې نه وراخوا د جنوب مغرب نو حد ، د دې شمالی حدود مشرقی پلو د کشمیر وادی د جنوبي حد د سلسله کوه څخه یو ځایې کېږی او مغرب پلو وادی نه رسی بیا شمال د هغه حد نه ورسی چرته چې د دریایی سنده او به د جهلم وادی بېلئ کړی . دلته د وادی سند هکوهستان یې سرحد شی او غن چې مونږ ضلع هزاره نه ورسو د مغرب حدود یې اندازه نه شی هم دریایی سند هو کښې نو بیا هم د دې مشرقی او مغربی سرحدات لامحدود دی .

ګریرسن وائی :

**The existence of lahnda as a separate Language has long been recognised under various names such as Jajki , Multani , Hindki or Hindko and Western Punjabi**
**(Linguistic Survey of Pakistan. VOL - IV. P-233)**

ترجمه : "لاندا" د یو ژبې په حیث په مختلفو نومو لکه جاجکی ، ملتانی هندکی یا هندکو او مغربی پنجابی ( ګاهو نه موجود ده -

بیا وائی :

**Elsewhere it is generally known as Hindko or Hindki but the dialect of Peshawar city is called Peshawari.**
**( Linguistic Survey of Pakistan Vol : IV. P-241.)**

ترجمه: نور ځایه دا (لانډا) د هندکو یا هندکی په نوم مشهور ده خو د پښنور لهجې ته پښاوري وائی.

ګریرسن لیکی:

**The main language of North - Western Frontier district of Kohat is Pashto. There are, however scattered over the district numerous Hindus , as well as other people, particularly Awans, immigrants from Jehlum, Attock and Rawalpindi.**
**( Linguistic Survey of Pakistan Vol : IV . page 458)**

ترجمه: د شمال مغربي سرحد د ضلع کوهاټ د اکثریت ژبه پښتو ده. خو ضلع کښې خواره واره پراته ډیر زیات هندوان او نور کسان لکه د جهلم اټک او راولپنډۍ نه راغلی "اعوان" مهاجرین خاص دی.

جارج ګریرسن د پښتو ژبې متعلق لیکی:

**In the N.W.F.P. it is the principal language , being spoken by 1229599 people out of a total population of 2210471. Most of the remainder speak some form or other of Lahnda.**
**( Linguistic Survey of Pakistan Vol : II Page 10)**

ترجمه: صوبه سرحد کښې پښتو د اکثریت ژبه ده چې د صوبې[1] د کل آبادۍ ۲،۲۱۰،۴۷۱ نه د ژبې ۱،۲۲۹،۵۹۹ کسان وائی. باقي پاتې خلق اکثر "لانډا" په یو نه یو تشکل وائی ـــه

---

[1] له دې کښې هغه وخت ملاکنډ ډویژن شامل نه وو.

جارج گریرسن په خپل تحقیق کښې د ښې په لحاظ د ضلع پښاور ذکر په دغه انداز کوي:

**Peshawar is a Pashto speaking district. The population of Peshawar in 1901 was 788707 of whom 619025 spoke Pashto language. At the same time the Hindus settled in the district speak a form of North Western Lahnda. The speakers of both languages live side by side and the distinction is one of nationality , not of locality. The great city of Peshawar contains a further mixture of peoples. Here , not only are Pashto and Hindko spoken, but also Hindustani Punjabi and other languages of various parts of India ----- Here the mixture of languages is so great that some, not without reason, describe this form of Hindko, locally known as Peshawari.**

**( Linguistic Survey of Pakistan Vol : IV page 554)**

ترجمه: پېښور د پښتو ویونکو ضلع ده. ۱۹۰۱ء کښې د پېښور
کل آبادی ۷۸۸،۷۰۷ کسان وه. چې د ې کښې د ۶۱۹،۰۲۵
کسانو به پښتو وه. دوئ ځخه چې په دې ضلع کښې
کوم هندوان آباد دی. دوئ د شمال مغرب "لاندا" وائی
د دواړو ژبو خلق یو بل ځخه یو ځائې وسی. د دوئ
تو مینځه فرق او بېلتون د علاقې په لحاظ نه دے
بلکه د قومیت[1] په اساس دے. د پېښور لویې ښار
کښې مختلف قسم خلق آباد دی. دلته صرف پښتو او
هندکو ویلے نه شی بلکه دلته د هندوستان د مختلف

---

[1] د وقوی نظریه = پښتون او هندکیان = مسلمان او هندو

علاقو نو کي لکه هندوستاني، پنجابي وغيره هم ، ښے
شي. دلته دومره ډيري ژباني دي چې ځيني کسان
څه دليل نه بغير د هندکو دي قسم ته مقامي لهوړ
پېښوري ژبه وائي ."

جارج گريرسن ليکي :

Hindki or Hindko, the language of the Hindus (i.e. Non-Pathans) is the name given to Lahnda in the west of the Lahnda Tract, in which Musalmans Pashto - speaking Pathans also dwell.
( Linguistic Survey of Pakistan Vol :I page 136 )

ترجمه :

" هندکي يا هندکو د هندوانو ژبه ده. چې د لاندا
علاقې (جهلم) نه پورته په مغرب کښې د "لاندا" نوم دے
دغلته مسلمان پښتو ويونکي پښتانه هم آباد دي ."

د سر جارج گريرسن د هندوستان په مختلفو ژبو دغه تحقيق روان وو
چې دغه تحقيق د انګريز مؤرخين د بحث موضوع شو او د دغه تحقيق او څيړنې
خلاصه، نچوړ او اقتباسات د صوبه سرحد د مردم شماري مختلف
ګزټيرو کښې شائع کېدل شروع شول . دلته د دغه اقتباسات او تحريرات څو
مثالونه ورکوو :

The language known to Philologists a Lahnda, which is spoken by the bulk of the people in the N.W.F.P. other than those who speak Pashto , is commonly regarded as a form of Punjabi.
( Census of India 1911 Vol : I by E.A. GAIT page 319)

ترجمه : هغه ژبه چې پوهان دا ژبه د "لاندا" په نوم پېژني. د صوبه سرحد

په سیمه کښې یو اړخ پښتو وېلې کېږي نو بل طرفته دا ته به
ئُم کا تی خلق وائي. دا عموماً د پنجابي ژبې یو قسم ګڼلې شي۔"

**Lahnda is often called Punjabi and is known to officials as Western Punjabi , it is not a dialect of standard Punjabi but a distinct and separate language. It is variously known in the N.W.F.P. as Hindki, Hinko and Derawal.**
**( Census of India 1911 Vol :1 by E.A. GAIT page 330)**

ترجمه: "لاندا" ته اکثر خلق پنجابي وائي او سرکاري خلق
یې مغربي پنجابي ګڼي. دا د ښه پنجابۍ لهجه نه ده بلکه
دا عه نه جُدا او مختلف ده. دا په صوبه سرحد کښې په
مختلف نومونو لکه هندکي، هِندکو، او ډېروالي "مشهور ده"
پنډت هری کشن کاول لیکي:

**The dialect spoken in the Western Punjab and usually known Western Punjabi, have been grouped by Sir George Grierson as Lahnda.**
**It belongs to the Sanskritic Sub - Branch but has been influenced considerably by the Pisacha language. (Census of India 1911)**

ترجمه: "د مغربي پنجاب په علاقه چې کومه لهجه ده او د مغربي
پنجابۍ په نوم مشهور ده نو جارج ګریرسن دې ته "لانډا"
وائي. دا د سنسکرت ژبې ذیلي ښاخ ده - خو
د پساچه ژبې اثر تحت ده

یو انګریز لیکوال بام فورډ "**Bomferd**" لیکي:

A Muzaffargarh Jat had no difficulty in making himself understood in Hazara , when he spoke his own dialect.
( Census of India 1911 by Latimer page 204)

ترجمه: د مظفرګړه د یو جاټ د پاره چې هغه په خپله
لهجه خبرې کوي. هزاره کښې د هغهٔ په ژبه
د خلقو پوهېد و هېڅ تکلیف او مشکلات نشته.»

د هزاره د مانسهره تحصیل متعلق درج دی:

14288 persons in Mansehra tehsil of Hazara district, whose language is Hinko, there being no doubt that they actually use a form of Lahnda or Western Punjabi.
(Census of India 1911 Vol :XIII by C. Latimer page 194)

ترجمه: د ضلع هزاره د مانسهره تحصیل د ۱۴۲۸۸ کسانو ژبه
هندکو ده- دې کښې هېڅ شک نشته چې دوئ "لاندا"
یا مغربي پنجابي وائي"

The dialect in the Western Punjab as well as among Non-Pashto speaking people of this Province and usually known as Western Punjabi, have been classified by Sir George Grierson as Lahnda or Lahndi. The people do not call these dialects by either of these names.
Lahnda means the West ( literally the direction in which the sun sets) and relatively to the central and Eastern Punjab, the language spoken in the tract lying in and to the west of the Punjab is called Lahnda di boli ( the language of the West )
( Census of India 1921 Vol: XIV by R.B. Bhai Lehna Sing Page 198)

ترجمه: د مغربي پنجاب او د دې صوبې د غیر پښتونو
لهجه مغربي پنجابي یادېږي خو جارج ګریرسن دې ته

«لانډا» یا «لانډی» وائي. ولې د دې ځائې خلق (پښتانه)
دا لهجې په دې نوم نه پېژني
د «لانډا» معنیٰ ده مغرب (یعني هغه ژبه چې د نمر
پرېوزې). نو مرکزي او مشرقي پنجاب څخه یې هم تعلق
دے دا ژبه د غلته هم ویلے شي او د پنجاب په مغربي سیمه
هم. دې ته «لانډا دي بولي» وائي یعني د مغرب ژبه.
لهنه سنګه یو بل ځائې لیکي:

**The indigenous Hindus and Sikh population throughout the province speak lahnda which is also the mother tongue of immigrants from the Western punjab ( Census of India 1921 page 205)**

ترجمه: د دې صوبې هندوان او سکهان «لانډا» وائي او د
هغه مهاجرینو ژبه هم ده، چې د مغربي پنجاب
نه دلته راغلي دي.

لهنه سنګه وړاندې لیکي:

**Urdu, Punjabi and Lahnda are closely allied to each other and a speaker of the one, can easily exchange his thoughts with those whose mother tongue is either of the other two languages, pashto is allied to Persian while Hindko (Lahnda) Punjabi and Urdu are popularly taken to be the different dialects. (Census of India 1921)**

ترجمه: اُردو، پنجابي او لانډا یو بل څخه ډیر نزیات
پیوستون لري. او که یو کس یوه ژبه ویلے شي
نو هغه د خپل خیالات اظهار هغه کسانو څخه په

آسانه کولے شی. کهٔ په دې نورو دوؤ ژبو کښې

یې یومور نۍ ژبه وی. د پښتو ژبې یات تعلق فارسی

ځخه دے. نو هندکو یا لاندا، پنجابی او اُردو دې

نه مختلف ژبې او لهجې دی"

لهنه سنګه وائی:

In Peshawar, Bannu and Kohat , Pashto is the language of the rural tracts just as Hindko is spoken in the urban areas. The language of the Hindus, however, is Hindko throughout the province. (Census of India 1921 Vol: XIV N.W.F.P. by R.B. Bhai Lehna Sing Page 200)

ترجمه: د پېښور، بنوں او کوهاټ په کلوکښې پښتو ده

او ښهری علاقوکښې هندکو ده چې په ټوله صوبه

کښې د هندوانو ژبه ده۔

لهنه سنګه لیکی:

The Gujars of Hazara Hills and neighbouring tracts have a language peculiar to themselves and it is called Gujari. It is a dialect of Rajastani, its grammer being the same as that of the language of Jaipur in Rajputana. It is really curious that in the mountains of Hazara and Kashmir we find a dialect of a language spoken hundreds of miles to their south-east in Rajputana (Census of India Page 208)

ترجمه: د هزاره د غرشیو او همسایه علاقو د ګوجرانو

ژبه چې هم دوئ ځخه مخصوص ده او د ګوجری

په نوم مشهوره ده د راجستهان لهجه ده او د ګرائمر په

لحاظ د راجپوتانه د جیپور ژبې ځخه مشابهه ده۔

حیرانی ده چې د هزاره او کشمیر په غرونوکښې موږ د

یو داسې ژبې لهجه وینو چې دې ځائې نه جنوب
مشرق پلو سڼکو نه بیله لرې په راجپوتانه کښې
وئیلے شي۔

**Pashto is the language of the Pathans, Hinko is the language spoken by Non-Pathans, residents of the province and by immigrants from the Punjab. (Census of India 1931 by captain G.L. Mallam and A.D.F. DUNDAS Page 174.**

ترجمه: پښتو د پښتنو ژبه ده او هندکو غیر
پښتون ژبه ده چې په دې صوبه کښې وسي او
پنجاب نه مهاجر راغلي دي۔

**Pashto is spoken in several places close to the Indus and from the Indus Westwards upto Afghan mountain country we find Lahnda also spoken, but principally by Hindus, the Musalman language being Pashto. As we get further South in the Derajat, Lahnda more than holds its own, and is the Principal language of the plains West of the Indus.**
**[(i) Census of India 1911 by Latimer Page-203.**
**(ii) Census of India 1931 by Mallam and Dundas Page-175.]**

ترجمه: پښتو د دریابې سنده نه څخه جوخت او دریابې
سنده نه پورته مغرب پلو د افغانستان غرنیزې علاقې
پورې په پرځایه وئیلے شي۔ "لانډا" هم خلق
وائي خو زیات ترې هندوان وائي د مسلمان
ژبه پښتو ده۔ مونږ چې څومره جنوب طرف
ډیره جات ته ځو نو د "لانډا" د ویونکو تعداد د
زیات تیږي او د دریابې سنده مغرب اړخ د

مېداني علاقې اهم ژبه ده"

In Peshawar, Bannu and Kohat, Pashto is the language of the Agricultural population and Hindko, the language of the trading and town - dwelling population. In the village the trading classes are for the most part Hindus whose mother tongue is Lahnda.
(Census of India 1931 by Mallam and Dundas Page-176)

ترجمه: پېښور، بنوں او کوهاټ کښې د زراعت پېشه
خلقو ژبه پښتو ده. او هندکو د تجارت پېشه او
ښاريانو ژبه ده. په کلو کښې اکثر تجارت پېشه
هندوان دي او د دوئ ژبه "لانډا" ده.

The "Awans" have spread over the South of the district Attock where their dialect is called Awankari, and across the Indus into Kohat where it is spoken by Hindus and Awans scattered amongst the Pashto speaking Pathan population. Here the Lahnda is called by various names, such as Awanki, Awankari, Hindki, Hindko and Kohati.
(Linguistic survey of Pakistan Vol - IV Page-242)

ترجمه: اعوان د ضلع اټک جنوبا خوا ته پراته دي او د دوئ

---

(i) عون په معنیٰ د مدد کونکی ده. وائي چې په هند د مسلمانانو د حملو دوران
د دوئ اسلاف د غازيانو په غله او پېسه د امداد په وجه د دغه وخت
مسلمان بادشاه د "اعوان" په خطاب ونازول.

(ii) اعوان زراعت پېشه دي. دوئ د خپل اصل ماخذ قطب شاه گڼي. چې
د حضرت علیؓ د نسب نه وو.

(iii) جنرل کننگهم لیکي چې دوئ اصلیت کښې انوان دي او د انو اولاد دے او
د سیتهین د قبضې راسې د هند و پاک په زمکه مېشته راروان دي.

(iv) د دیوان سنائي مطابق عوان په معنیٰ د "ظالم"
"تا که دهقانان چو عوانان قبا پوشان شدند
تخم کشت مردمان بے بارو بے برگ کرده اند"
(دیوان حکیم سنائي از مظاهر مصفا ص ۸۸)

ژبه اعوان کاری ده-دریایی سند ه نه پورته
په کوهاټ کښې دا ژبه هندوان او اعوان وائی
چې د پښتنو په مینځ کښې وسی-دلته " لاندنا "
په مختلف نومونو یادیږی-
لکه عوانکی، اعوانکاری، هندکی، هندکو او
کوهاټی .

د پنجاب یونیورسټۍ د پنجابۍ دیپارټمنټ چیرمین او د
پنجابۍ ژبې د "کھوج" رسالې مدیر ډاکټر شهباز ملک لیکی

Jatkali , Jaferi , and Jagrali in Balochistan and Hindko in N.W.F.P
all these are the dialects of Punjabi.
( Daily Frontier Post dated 11-01-1991)

ترجمه :

" بلوچستان کښې جاټکلی، جعفری، جګرالی او
صوبه سرحد کښې هندکو. داټولې ژبې د
پنجابۍ لهجې دی

په اخبار کښې د پاکستان د حکومت د ۱۹۸۱ء د مردم
شمارۍ یو ه خلکسناسو ورکړندې پیش کوم-دا جائزه محض
د ژبې په بنیاد ده، د اصل نسل یا قومیت په لحاظ
نه ده-

At Pakistan Level

| Urdu | Pun jabi | Pashto | Sin dhi | Balo chi | Brohi | Hin dko | Sira iki | othe rs | Total |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| 60 | 48.17 % | 13.15 % | 11.77 % | 3.02 % | 1.21 % | 2.43 % | 9.84 % | 2.81 % | 100 % |

ترجمه ۱: دَ پاکستان په سطح

| اُردو | پنجابي | پښتو | سندهي |
|---|---|---|---|
| ٧.٦٠٪ | ٤٨.١٧٪ | ١٣.١٥٪ | ١١.٧٧٪ |

| بلوچي | بروهي | هندکو | سرائیکي |
|---|---|---|---|
| ٣.٠٢٪ | ١.٢١٪ | ٢.٤٣٪ | ٩.٨٤٪ |

| نورې ژبې | کُل |
|---|---|
| ٢.٨١٪ | ١٠٠٪ |

At N.W.F.P. Level.

| Urdu | Pun jabi | Pashto | Sin dhi | Bal ochi | Brohi | Hind ko | Sira iki | Oth ers | Total |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| 0.83 % | 1.10 % | 68.30 % | 0.05 % | 0.04 % | 0.01 % | 18.13 % | 3.95 % | 7.59 % | 100 % |

ترجمه: ۲: دَ صوبه سرحد په سطح

| اُردو | پنجابي | پښتو |
|---|---|---|
| ٠.٨٣٪ | ١.١٥٪ | ٦٨.٣٠٪ |

| سندهي | بلوچي | بروهي |
|---|---|---|
| ٥.٠٥٪ | ٥.٠۴٪ | ٥.٠١٪ |
| هِندکو | سرائيکي | نوري ژبې |
| ١٨.١٣٪ | ٣.٩٥٪ | ٧.٥٩٪ |

کُل ١٠٠٪

دَ پاکستان حکومت مارچ ١٩٩٨ء کښې چې دَ کومې مردم شمارۍ بند وبست او اهتمام وکړو.

اوس کورو چې دَ دغه مردم شمارۍ څخه نتائج راوځي.

